بسم الله الرحمن الرحیم

قد افلح المؤمنون الذین هم فی صلوٰتهم خاشعون

بیشکه چه خلاصی وکړه هغه کسانو کوم چه مونځونه په عاجزی کوی

شهر رمضان الذی انزل فیه القرآن !

# فضائل رمضان

د


حضرت مولانا الحافظ الحاج المحدث محمد زکریا صاحب

شیخ الحدیث مدرسه مظاهر علوم سهارنپور !


ترجمه د


شیخ التفسیر حضرت مولانا حبیب الرحمن صاحب - دار التصنیف روستم

(مردان)



(منظور عام پریس پشاور)

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ
۱ ے صفحه کسا نوچه ایمان مور روړه دے - فرض کړے شوے ده په تاسو روژه لکه چه
فضائل رمضان فرض کړے شوے وه ۲ یے صفحه کسا نو بانږه چه خوا له تاسو نه وو
سنبا لی چه تاسو تحمان تروساتی دکنا هو تونه

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

نَحْمَدُهٗ وَنُصَلِّيْ عَلٰى رَسُوْلِهِ الْكَرِيْمِ - حَامِدًا وَمُصَلِّيًا وَمُسَلِّمًا

دَ ثنا صفت نه پس دَ رمضان المبارک په باره کښ یو څو احادیث لیکم. خوږ
نبی صلی الله علیه وسلم چه دَ مسلمانانو دَپاره کوم فضائل په هره معامله کښ فرمائی
دی دَدے اصلی قدر خو په هله شوے وو. چه بنده په دے ځان قربان کړے وے
خو زمونږ نه دَ دین قدر داسے تلے دے. چه په دے دَ عمل په ځائی دَدے طرف
ته هډو فکر نه کوو. تردے چه اوس دَدے علم هم کم شو. ځکه زه دا یو
څو پانړے دَدے دَپاره لیکم. چه که دَجمات امامان او دَ تراویحو حافظان
او دغسے نور لوستونکی کوم چه دَ دین سره څه قدر ے محبت لری دوی دا اتحادیث
دروژے په اولو ورځو کښ خلقو ته اوروی. نو دَ الله دَ رحمت نه لرے نه ده.
چه دَ خوږ نبی علیه السلام دَ کلام په برکت دَدے میاړے میاشتے څه قدر او کړو.
او کیدے شی چه په دے خلق نیک عملونه اوکړی. او دَ بد عملوکے اوکړی خوږ
نبی صلی الله علیه وسلم وائی چه که ستا په وجه یو کس هم هدایت بیامونده.
نو دا ستا دَپاره دَ سرو اوښانو نه غوره خبره ده.

---

دروژے میاشت په موږ دَ خدائی لوئی انعام دے. خو هله چه ددے
قدر او شی. کنی هسے نوم قدرے یه شی نور هیڅ نه. خوږ نبی علیه السلام وائی
چه که څوک درمضان دَ عزت نه خبر شو. نو دے به وائی. چه خدایه ټول
کال رمضان کړے. خوږ نبی علیه السلام د رمضان د روژو او دَ دے میاشتے دَدے
روژو په باره کښ وائی. چه دا دَ زړه زنګ او وسوسے لرے کوی. دغه وجه
ده. چه اصحابو به دَجهاد په سخت سفر کښ هم روژے نیوے. سره ددے
چه دوی ته نه دروژو اجازت. وو. تردے چه خوږ نبی علیه السلام بیادوی ته
حکم منع کړل. په یوے غزا کښ اصحاب په یو منزل کښ کوز شو. ګرمی ډیره
وه. دَ غریبئ په وجه دَ نمرنه دَ بچاؤ دَپاره جامے هم نه وے. په لاس به
یے دَ نمرنه بچاؤ کوو. ځکه ډیر پکښ اوغورځیده. داسے حال به هم وو. چه
دوی په ټول کال روژے نیوے.

دَ رمضان ټول فضائل به ما عوندے بے شُبے کله بیان کړے شی. اوکه څه په تفصیل اولیکلے شی. نو دَ دے کتو ته کله څوک اوزګار دی. نن خو دَ دین دَ کتابونو کتل یے کاری کړے شی. ځکه ما صرف یو ویشت احادیث اولیکل او دَ دے ذکر م په درے فصلونو کښ اوکړو. اول دَ رمضان په فضائلو کښ په دے کښ لس احادیث دی. دویم دَ شپے قدر په بیان کښ په دے کښ اووه احادیث دی. دریم دَ اعتکاف په ذکر کښ په دے کښ درے احادیث دی. بله خاتمه ده. په یو اوږد حدیث دا رساله ختمه شوه.

# فصل اول

## فضائل رمضان

(۱) عَنْ سَلْمَانَ قَالَ خَطَبَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صلعم فِيْ آخِرِ يَوْمٍ مِّنْ شَعْبَانَ فَقَالَ يَا أَيُّهَا النَّاسُ قَدْ أَظَلَّكُمْ شَهْرٌ عَظِيْمٌ مُّبَارَكٌ شَهْرٌ فِيْهِ لَيْلَةٌ خَيْرٌ مِّنْ أَلْفِ شَهْرٍ. شَهْرٌ جَعَلَ اللّٰهُ صِيَامَهُ فَرِيْضَةً وَّقِيَامُ لَيْلِهِ تَطَوُّعًا مَّنْ تَقَرَّبَ فِيْهِ بِخَصْلَةٍ كَانَ كَمَنْ أَدّٰى فَرِيْضَةً فِيْمَا سِوَاهُ وَمَنْ أَدّٰى فَرِيْضَةً فِيْهِ كَانَ كَمَنْ أَدّٰى سَبْعِيْنَ فَرِيْضَةً فِيْمَا سِوَاهُ وَهُوَ شَهْرُ الصَّبْرِ وَالصَّبْرُ ثَوَابُهُ الْجَنَّةُ وَشَهْرُ الْمُوَاسَاةِ وَشَهْرٌ يُزَادُ رِزْقُ الْمُؤْمِنِ فِيْهِ مَنْ فَطَّرَ فِيْهِ صَائِمًا كَانَ مَغْفِرَةً لِّذُنُوْبِهِ وَعِتْقَ رَقَبَتِهِ مِنَ النَّارِ وَكَانَ لَهُ مِثْلُ أَجْرِهِ مِنْ غَيْرِ أَنْ يَّنْقُصَ مِنْ أَجْرِهِ شَيْءٌ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ

دَ سلمان رضه نه روایت دے. چه خوږ نبی علیه السلام مونږ ته دَ شعبان په آخره ورځ وعظ اوکړو. چه اے خلقو! په تاسو یوه میاشت راتلونکے ده. چه ډیره لویه ده. ډیره مبارکه ده. په دیکښ یوه شپه ده. چه دَ زرو میاشتو نه غوره ده. دَ دے میاشتے روژے فرض دی. او په تراویحو کښ یے ثواب دے. څوک چه څان په دیکښ په نیکو خدائ ته نزدے کړی نو دا داسے دے. لکه چه په نورو میاشتو کښ فرض اوکړی. او چه په دیکښ فرض اوکړی نو دَ نورو میاشتو دَ اویا فرضو هومره ثواب لری. دا میاشت دَ صبر ده. او دَ صبر بدله جنت دے. او دا میاشت دَ خلقو سره دَ همدردۍ ده. په دیکښ دَ مومن رزق زیاتیږی څوک

لَيْسَ كُلُّنَا يَجِدُ مَا يُفَطِّرُ الصَّائِمَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْطِي اللّٰهُ هٰذَا الثَّوَابَ مَنْ فَطَّرَ صَائِمًا عَلٰى تَمْرَةٍ اَوْ شُرْبَةِ مَاءٍ اَوْ مَذْقَةِ لَبَنٍ وَهُوَ شَهْرٌ اَوَّلُهٗ رَحْمَةٌ وَاَوْسَطُهٗ مَغْفِرَةٌ وَاٰخِرُهٗ عِتْقٌ مِّنَ النَّارِ مَنْ خَفَّفَ عَنْ مَمْلُوْكِهٖ فِيْهِ غَفَرَ اللّٰهُ لَهٗ وَاَعْتَقَهٗ مِنَ النَّارِ وَاسْتَكْثِرُوْا فِيْهِ مِنْ اَرْبَعِ خِصَالٍ خَصْلَتَيْنِ تُرْضُوْنَ بِهِمَا رَبَّكُمْ وَخَصْلَتَيْنِ لَا غِنَاءَ بِكُمْ عَنْهُمَا فَاَمَّا الْخَصْلَتَانِ اللَّتَانِ تُرْضُوْنَ بِهِمَا رَبَّكُمْ فَشَهَادَةُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَتَسْتَغْفِرُوْنَهٗ وَاَمَّا الْخَصْلَتَانِ اللَّتَانِ لَا غِنَاءَ بِكُمْ عَنْهُمَا فَتَسْئَلُوْنَ الْجَنَّةَ وَتَعُوْذُوْنَ بِهٖ مِنَ النَّارِ وَمَنْ اَسْقٰى صَائِمًا سَقَاهُ اللّٰهُ مِنْ حَوْضِيْ شُرْبَةً لَا يَظْمَأُ حَتّٰى يَدْخُلَ الْجَنَّةَ۔

چه دَ روژه دارو روژه ماتے اوکړی. نو دَ دهٔ گناهونه به معاف شی. او دَ اورنه به خلاص شی. او دَ دهٔ به دَ روژه دار هومره ثواب اوشی. بے دَ دے نه چه ددهٔ نه کے اوشی څه قدر رے. دوی عرض اوکړو. چه زمونږ دَ ټولو سخه خو دَ بلٔ دَ روژه ماتے څه نه وی. نو خوږ نبیؐ ورته اووے. چه دا ثواب به دَ کجورے په ورکولو او په یو گوټ اوبو یا په یو گوټ پیو هم ورکیدے شی. دَ دے میاشتے اول رحمت دے. مینځ ئے بخنه دهٔ. او آخر ئے دَ اور نه خلاصے دے. څوک چه په دیکښې په غلام لږ کار اوکړی. نو خدائ به دَ او بخی. او دے به دَ اور نه خلاص کړی. او په دیکښې څلور کار دونه ډیر کوئ. په دَ کښې دوه دَ خدائ دَ رضاوی. او دَ دوو نه ستاسو خلاصے نشته. دَ خدائ دَ رضا هغه کلمه طیبه او استغفار دے او هغه دوه چه ستاسو ترے خلاصے نشته. هغه دا چه جنت غواړئ. او دَ اور نه پناه غواړئ. او څوک چه روژه دار ته اوبه ورکړی. نو دهٔ ته به خدائ ځما دَ حوض نه داسے اوبه ورکړی چه تر جنت تلو به بیا نه تږے کیږی.

**فائده**: په دے حدیث کښې دَ محمد ﷺ څینو څه کلام شته خو دَ دے اکثر مضامین په نورو روایاتو کښې موندے شی. ځکه په دے بحث څه معنی نه لری. په دے حدیث کښې بو خو خبرے معلومے شوے. یو دا چه دَ شو قدر په آخری ورځ وعظ دا خبره ښکاره کوی. چه دَ رمضان یوه سترگه رب دِ ښکاره تیر نه شی. او په دے وعظ کښې دَ شبِ قدر ذکر دے. چه په دے به مخکښې په دریم فصل کښې ذکر راشی. بل

بلې یې دَ دے دَ روژے فرض والے او دَ تراویحو سنت والے بیان کړو. دَ دینه معلومه
شوه. چه دا تراویح هم دَ خدائ حکم دے. او خو رِ نبي صلی الله علیه وسلم بیا په
خپل فرمان دَ دے تاکید اوکړو. ځکه ټول امامان دَ تراویحو په سنت والی قائل
دی. په برهان کښ لیکی. چه بے دَ روافضو نه ټول خلق دا سنت منی. حضرت
عبدالحق صاحب لیکلی دی. چه که دَ ښار خلقو تراویح پریخودے. نو دَ دوی
سره جنګ کول جائز دی. بعض خلق تش ختم اوکړی. او بیا تراویح نه کوی
نو دوی په غلطئ دی. دا دوه سنته دی. ختم په تراویحو کښ اوټوله میاشت
تراویح کول. خو که څوک په سفر وی. نو هغه دِ کم نه کم په تراویحو کښ دَ قرآن
شریف ختم واوری. چه دَ ختم قرآن نه محروم نه شی او بیا چه چرته ځی. نو
هلته دِ تراویح کوی. بل دَ فرائضو او نفلو دَ ثواب متعلق خو رِ نبي علیه السلام
ارفرمائیل. چه دَ دے میاشتے نفل دَ نورو میاشتو دَ فرائضو ثواب لری. او دَ
دے میاشتے فرض دَ نورو میاشتو دَ اویا فرائضو ثواب لری. نو مونږ ته پکار دی
چه دَ دے میاشت دَ فرائضو او نوافلو خاص خیال اوساتو. عموماً خلق چه
دَ پیشمنی نه اوزګار شی. نو بیا اوده شی او فرض مونځ ترے لاړ شی. کنی نو
دَ جمع مونځ خو ترے اکثر لاړ شی. سره دَ دے چه قضا مونځ ناقص مونځ دے
دا څمونږ دَ فرضو حال دے. او دَ جماعت نه دے او سیدو نکو بے دَ جماعت نه هغه
مونځ نه کیږی. مظاهر حق لیکی چه فرض قدرے به یے اوشی. خو دَ مونځ ثواب
نه بے برخے شی. دغسے دَ ماښام مونځ دَ روژه ماتی په وجه زمونږ نه پاتے شی.
اول رکعت یا تکبیر تحریمه خو هرو څمونږ په خیال کښ نه وی. بیا دوهم په دوهمی
او خروچه تراویح خو بیږ ده دَ ماسخوتن مونځ ته هم نه شو ورتلے. دا څمونږ
دَ فرضو حال دے. غرمه دَ لوږے یا تندے په وجه اوده شو. نو دَ ماسپخین مونځ
رانه پاتے شی. او ماز یګر دَ روژه ماتی په غم کښ په دکانو نو کر څو. نو دا مونځ
رانه هم پاتے شی. دا خبره تا سو وینئ. نو دا څمونږ دَ فرائضو حال دے. او
نوافل دَ دے خو نوم ماخله. دَ ساخت مونځ ته مونږ کله اوزګار یو. په
هغه وخت خو مونږ اوده یو. او اوابین دَ ماښام دَ مانځه نه روستو شپږ رکعته

دی. دے ته مونږ دَ ماښام دَ مانځه نه روستو کله ایسارید ے شو. او س ئے روژه ماته کړیده. ډوډۍ سرېږی او ګُلے خوراک غواړی. او لا مخکښ لږ ساعت پس تراویح هم دی. باقی شو تهجد نو په دے وخت کښ خو مونږ په پښتو ستړګو ډوډۍ خورو. تهجد و ته کله سم یو. خو ږ نبی صلی الله خو دَ فرائضو او نوافلو دَ پاره دَ شو قدر په آخره ورځ داشوا بونه او ښوده. او څمونږ دَ اکثرو دا حال دے. نو الله دِ مونږ دَ دے قدر رمضے میاشتے په قدر پو یه کړی. چه دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم دَ فرمان هسے دَ روژے قدر راوکړو. وا مولانا خلیل احمد صاحب نور الله مرقده په ډیرو رمضانونو کښ لید لے دے. دوی به دَ ماښام نه پس په نفلو کښ پنځه پاوه قرآن شریف وے. بیا په نیمه ګهنټه کښ ډوډۍ خوړل، په تراویحو دوه ګهنټے لګول، او په مدینه منوره کښ خو به دَ ماسخوتن او دَ تراویحو په مونځو نو درے ګهنټے لګیدے. بیا درے ګهنټے آرام بیا تهجد. او چه صباته به نیمه ګهنټه پاتے شوه. نو سحری (چړ بانګے یا پیشمنی) کول. دَ دینه پس دَ سحر مانځه پورے تلاوت او وظائف. بیا تر اشراقه مراقبه بیا یوه ګهنټه آرام. بیا دَ بَذْلُ الْمَجْهُوْد شرح ابوداؤد تر یو ے بجے لیکل دَ ډاک جوابونه. بیا دَ ماسپخین پورے دَ غرمے خوب. او بیا دَ ماسپخین نه تر مازیګره تلاوت. دَ مازیګر نه تر ماښامه تسبیحات. او دَ حاضرینو سره خبرے. په رمضان کښ به دَ مخکښ نه زیات نوافل دوی کول.

دغه رنګ دَ شیخ الهند مولانا محمود الحسن مرحوم دا معمول وو. چه دَ تراویحو نه پس به تر سحر مانځه پورے په نوافلو کښ مصروف وو. او دَ مختلفو حافظانو نه بهٔ قرآن شریف اوریدو. او شاه عبدالرحیم صاحب راٸپوری به خو ټول رمضان شپه او ورځ په تلاوت کښ مصروف وو. ډاک بند، ملاقاتو نه بند، خو ګه لږ ے غونډے دَ خادمانو سره خبرے. دَ دے واقعاتو په لیکلو کښ م غرض دا دے چه مونږ دَ دوی تابعداری اوکړو. څوک چه په دنیوی کارونو کښ ډیر مشغول نه وی. یکار دی چه یوٸ لسٹ میاشتے خو د غسے لاړے. دا دَ رمضان میاشت خو دِ په عباداتو کښ اولګوی. ملازمان چه دَ کیږے دَ پاره یا قاعده شپږ ګهنټے پابندی کوی. او دَ دفتر نه باهر نه ځی. نو دَ رمضان په میاشت کښ دِ دے دَ دفتر تر وخته دَ

قرآن شریف په تلاوت کښ اولګوی. دغسې نور اوقات دِ ورله اوباسی. دغسې سوداګر دِ یوخواد دکان کوی. او بل خوا دِ په اوزګار وخت کښ تلاوت کوی. یا دَ کهنټې دوؤ دَپاره دِ مخکښ دکان بند کړی. او په عبادا تو دِ کښې کوی دَدې میاشت
دَ قرآن دَ تلاوت سره خاص مناسبت دے. دَدې اهتمام پکار دے.

په دے میاشت کښ اکثر اسمانی کتابونه نازل شوی دی. لکه قرآن شریف دَلوح محفوظ نه دَدنیا آسمان ته په دے میاشت کښ راکوز شوے دے. او بیا رو رو په دیرویشت کاله کښ په موقعه موقعه راکوزیده. دغسې دَ حضرت ابراهیم صحیفے دَ رمضان په اول یا دریم روځ نازلے شوی دی. دَ داوؑدٌ زبور په اتلسم یا دولسم رمضان نازل شوے دے. او توراة په موسیٰؑ باندے په شپږم رمضان باندے. انجیل په عیسیٰؑ باندے په دولسم یا دیارلسم تاریخ باندے. دَ دینه دا معلومیږی چه دَ رمضان دَخدائیؐ کلام سره خاص مناسبت دے. ځکه چه دَ قرآن شریف تلاوت دَ روایاتو نه ډیر معلومیږی. ځکه جبرائیل علیه السلام به دَخوږ نبی صلی الله علیه وسلم سره هرکال دور کوو. او دا په رمضان کښ او بعض روایاتو کښ دی. چه دَه به دا دَخوږ نبی صلی الله علیه وسلم نه اوریده. ځکه دَ قران شریف دور پکار دے. چه کله یو وایئ بل اوری او کله بل. دا مستحب کار دے په آخر کښ دَ دے حدیث نه څلور خبرے معلومیږی. چه دا ډیر ډیر کول پکار دی کلمه طیبه، استغفار، دَجنت دَ حصول دعا او دَ دوزخ نه دَ بچ کیدو سوال. څه خوش قسمته بنده به وی چه دَ دے دَپاره په اوزګار وخت کښ ډیروالے اوکړی. یا په کار کښ زړه او ژبه په دے مصروف لری. چه صبا ته بنده دا عرض کولے شی.

زه که وومه دَ دنیا په لاس کښ ګهیر !

خو اے خدایه ته رَ هم نه وے څه هیر !

بل خوږ نبی صلی الله علیه وسلم دَ صبر فرمان کوی. چه خپله لوږه تنده ګرمی او هرقسم سختی په صبر تیروؤ. چغے سورے، فریاد نه شکایتو نه مکوه. په تراویحو کښ که څه قدرے تکلیف وی. نو په دے هم صبر کوه. دا مصیبت او سختی مه ګنړه. لیږ فکر اوکړه. دَ دنیا دَکار دَپاره موږ په ګرمئ سرځئ او ستوماتیا

نه یو. چه فانی او بے قدره کار دے. نو د قیمتی کار د پاره د خدای پاک د رضا او د خوږ نبی علیه السلام د اطاعت کار د ولے په موږ گران وی.

بیا فرمان دے چه د فقیرانو عاجزانو سره ښه سلوک پکار دے. چه ته په گنړو ځیزونو روژه ماته وے. نو ده ته هم روژه ماتے ورکړه. که د ځان نه غوړه شئے ورکولے نو د ځان برابر خو ورکړه. د عیسے د ده د سحری د خوراک غم خیال او ماته. اصحابو په دے سلسله کښ دا سے عملی نمونے پریښی دی. چه هغه خو موږ ته کول گران دی. ولے څه نه څه خو پکښ د دوی هسے عمل پکار دے په سوونو زرگونو داسے واقعات شته. چه د دے په کتونده کو ته یه خوله کیږی. ډیر موک په جنګ کښ ابو جهم د خپل تره ځوئے په میدان جنګ کښ تلاش کوی. او د ځان سره مشکیزه وړی. چه که زخمی وی چه اوبه ورکړی او څه لاس وړته او وینځی آخر دے بیا مونده. ده دا ته اوبه ورکولے نو غلته بل زخمی آواز اوکړو. ماته اوبه راکړی. د ابو جهم د تره ځوی ابو جهم ته اووے. چه خیر دے ما پریږ ده ده ته دا اوبه ورکړه. دے چه هغه ته ور غے نو د هغه په خوا کښ بل زخمی اوبه او غوښتے. ده هم اوے چه ماته مه راکوه. ده ته ورکړه. دے چه هغه ته ورغے نو هغه ساورکړے وو. ابو جهم چه بیر ته راغے نو دا دویم هم مړ وو. او چه بیا د خپل تره ځوی ته راغے نو دے هم مړ وو. دا وه قربانی. ځان یې د تندے نه مړ کولو خو ملگری ته یې اوبه رسول غوښتل. رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَاَرْضَاهُمْ وَاَرْزُقْنَا اِتِّبَاعَهُمْ (آمین)

په روح البیان کښ د سیوطی د جامع صغیر او سخاوی د مقاصد نه د ابن عمر په روایت د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم فرمان دے. چه په امت کښ به هر وخت پنځه سوه چونړ بندگان او څلویښت ابدال وی. چه په دے کښ یو مړ شی. نو فوراً بل د دوی په ځائے او دریږی. اصحابو د دے خلقو د اعمالو تپوس اوکړو. دوی او فرمائیل. چه دوی به د ظالمانو نه معافی کوی. او د ناکاره معامله کونکو سره به

احسان کوی۔ او د خدائ پاک په ورکړی رزق کښ په د خلقو سره
همدردی کوی۔

بل حدیث دے چه څوک اوږی ته ډوډئ ورکوی بربنډ ته جامے ورکوی
مسافر ته تکو نړه ورکوی. نو خدائے تعالیٰ به په قیامت کښې دګا د سختو په وخت کښ پناه
ورکړی۔

یحییٰ رح برمکی به په حضرت سفیان ثوری رح عالم هره میاشت زر روپئ لګولے. نو
ده به ده ته په سجده کښ داسے دعا کوله. چه اے الله! یحییٰ رح زما په دنیا کښ
د خوراک انتظام اوکړه. ته د ده په آخرة کښ خوشحالی نصیب کړے! چه یحییٰ رح مړ
شه. نو چا په خوب کښ ترے تپوس اوکړو. چه څه حال دے؟ ده وے د سفیان
د دعا په برکت مې بخنه اوشوه۔

بیا په دے حدیث کښ د بل د روژه ماتی د انتظام فضیلت ښودلے شوے دے
په یو حدیث کښ دی. چه چا د بل د روژه ماتی انتظام اوکړو نو په ده د رمضان
په شپو کښ ملائکے رحمت لیږی. او د شب قدر په شپه د ده سره جبرائیلؑ مصافحی
کوی. او د دے به دا فائده وی. چه د ده په زړه کښ به نرمی پیدا شی. او د
سترګو نه به یے اوښکے بهیږی. حماد بن سلمه رح به روزانه د پنځو سو کسانو د روژه
ماتی انتظام کوو۔

بیائے په حدیث کښ د رمضان اولے حصے ته رحمت فرمائیلے دے. چه په دے
کښ د الله پاک انعامونه متوجه شی. په عام مسلمانانو رحم کیدل شروع شی
دچه مخلق د دے شکر اوباسی نو دوی ته زیاتے شروع شی. او په مینځ کښ یے
بخښنه ده. څکه چه ده په دریمه حصه روژے اونیوے. نو ده ته بخښنه او بدله
ورکول شروع شی. او آخری حصے یے د عذاب نه خلاصے دی. په ډیرو روایاتو
کښ په آخر ختم د رمضان کښ د اور نه د خلاصی زیری راغلی دی. په اصل کښ
د دے مطلب دا دے. چه بنی آدم په درے قسمه دی. یو هغه چه د ګناهونو
پیټے پرے نه وی. نو په دوی د رمضان په اول کښ د رحمت انعام شروع
شی. او دویم معمولی ګناهګار دوی نو دوی چه څه قدرے روژے اونیسی۔

نو دے په برکت او بدله کښ د دوی بخنه او د گناهو نو معافی اوشی. او دریم
هغه چیر گنهگار وی. د دوی د پاره زیاته حصه د روژے په لړ لو د اور نه
خلاصے کیږی. په چا چه د اول نه رحمتو نه او انعامونه شروع شوی دی
د هغوی خو د روجو په لړ لو د رحمتونو ډیری الی ی. (والله اعلم وعلمه اتم)

بل په دغه حدیث کښ دی. چه مالکان دِ په غلامانو اسانتیا کوی. ځکه
چه دوی هم روژه لری. نو په دوی ډیر کار نه دے پکار. او که ډیر کار وی.
او په رمضان کښ په دوی د اسانتیا د پاره بل ملازم اونیوے شی نو ښه
به وی. خو دا هله چه نوکر روژه داروی. کنی بیا خو د ده د پاره توپ او عما
یو شان دے. او دا خو ډیره بے غیرتی ده. چه مالک روژه خوری او ملازمان
ئے روژه لری. او دا مالک د دے نه سخت کار په روژه کښ اخلی او که چرته
د دے نوکران نه د مونځ روژے په وجه څه قدرے کے اوشی. نو دوی
ته زور نه کوی. وَسَيَعْلَمُ الَّذِينَ ظَلَمُوا اَىَّ مُنْقَلَبٍ يَّنْقَلِبُوْنَ. زربه معلوم
شی. چه ظالمان به کوم جهنم ته ځی.

بیا هم په دے حدیث کښ خوږ نبی علیه السلام د څلورو خبرو حکم کوی. چه
دا ډیر ډیر وایئ. اول د شهادت کلمه ده. دا هغه غوره کلمه ده. چه موسیٰ علیه السلام
ته به بار بار د خاصے دعا غوختلو د پاره صرف دا ښودلے شوے ده. او ده ته د دے
درونوالے ښودلے شو یدے دا د هر وا اسمانونو او زمکو نه په میزان کښ درنه ده. او په
دے کلمه د اسمان دروازے پرانستے شی. او دا بے منع کو لو عرش ته رسی. خو چه د دے
ویونکے د لو یو گناهونو نه بچ وی. دا تانون قدرت دے. چه ډیر ضروری څیز ډیر
زیات وی. لکه او به خو مره ضروری دی. او خو مره عامے دی. او کیمیا بے کاره څیز خو مره
نایابه ده. نو دغسے کلمه طیبه چه غوره ذکر دے. دا عام ده. چه هیڅوک ترینه بے برخے
نه شی. او س که سره د دے غوبنه بنده محروم شی. نو دا به د ده بد بختی وی.
دویم استغفار دے. خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وایئ. چه څوک استغفار ډیر وایئ
نو ده ته به هر سختئ کښ خدائ پاک لار پرانځی. او د هر غم نه به خلاص شی. او د دا
رزق ته به ورته روزی رازی. چه د ده په دغلته هم وگمان نه وی. حدیث دے

چه ګناهونه خو مونږ کوو- وے بنه ګنهګار هغه دے. چه د ګناه نه پس توبه اوباسی. په ګناه چه په زړه داغ اولږی. نو په توبه دا وینځلے شی. کنی باقی پروت وی. بیا په آخرکښ د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم فرمان دے. چه د هغې نه خلاصے نشته- د جنت طلب او د دوزخ نه امن. خدائ د مونږ ټولو ته جنت راکړی. او د دوزخ نه مو خدائ په امن کړه. (آمین)

(۲) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اُعْطِیَتْ اُمَّتِیْ خَمْسَ خِصَالٍ فِیْ رَمَضَانَ لَمْ تُعْطَهُنَّ اُمَّةٌ قَبْلَهُمْ خُلُوْفُ فَمِ الصَّائِمِ اَطْیَبُ عِنْدَ اللّٰهِ مِنْ رِیْحِ الْمِسْكِ وَ تَسْتَغْفِرُ لَهُمُ الْحِیْتَانُ حَتّٰی یُفْطِرُوْا وَیُزَیِّنُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ كُلَّ یَوْمٍ جَنَّتَهٗ ثُمَّ یَقُوْلُ یُوْشِكُ عِبَادِیَ الصَّالِحُوْنَ اَنْ یُّلْقُوْا عَنْهُمُ الْمُؤْنَةَ وَیَصِیْرُوْا اِلَیْكِ وَ تُصَفَّدُ فِیْهِ مَرَدَةُ الشَّیَاطِیْنِ فَلَا یَخْلُصُوْا اِلٰی مَا كَانُوْا یَخْلُصُوْنَ اِلَیْهِ فِیْ غَیْرِهٖ وَ یُغْفَرُ لَهُمْ فِیْ اٰخِرِ لَیْلَةٍ قِیْلَ یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَهِیَ لَیْلَةُ الْقَدْرِ قَالَ لَا وَلٰكِنَّ الْعَامِلَ اِنَّمَا یُوَفّٰی اَجْرَهٗ اِذَا قَضٰی عَمَلَهٗ (احمد)

د ابوهریرة رض نه روایت دے. ده وے چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے. چه ځما امت ته په خصوصیت سره د رمضان په باره کښ پنځه مخصوص ځیزونه ورکړی شوی دی. کوم چه مخکنو امتونو ته نه دی ورکړی شوی. اول دا چه د دوی د روژے په وجه د خُلے بوئ د مشکو نه زیات د خدائ خوښ دے. دویم ماهیان تر روژه ماتی دوی ته دعا کوی. او جنت هره ورځ د دوی د پاره ښاسته کوی. او جنت والا چه نزدے ده دوی به د دنیا د سختو نه پس تا نه راځی. او په دے کښ سرکښه شیطانان اوتړلے شی. چه هغه بدی په بنده نه شی کولے. په کوم چه په نورو میاشتو کښ دی قادر وو. او د روژے په آخره شپه د دوی بخښنه اوشی. اصحابو عرض اوکړو. چه دا د لیلة القدر شپه ده. خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے. چه دا خو مزدور ته مزدوری ورکوی.

فائده:- ارمان دے چه دا خصوصی نعمتونه مونږ په روژه کښ حاصل کړے- د کوم نه چه نور امتونه محروم وو. نو هیله د دے قدر به اوشی.

د روژه دار د خولے بد بوئ به په آخرت کښ خدائ په خوشبوئ بدله کړی چه هغه به د مشکو نه زیاته خوشبویه وی. بل دا چه هرکله دا روژه دار د قبر نه

یاسی. نو دا نه یه داسے خوشبوئي خیژي. چه هغه به د مشکو نه سیوا وي. او د ریه د دے معنی دا ده. چه کوم د محبت سره تعلق لري. چه دا بنده د خدائ دومره محبوب شه. چه د ده بد بوئي ورته خوشبوئي اوګرزیده. ؎

حافظ: د ختن خوشبوئي پریږده — د زلفا نو د بنئ خوشبوئي واخله!

د دے نه غرض د روژه دار خدائ ته نژدے والے دے. او دغه وجه ده چه د نورو عباداتو بدلے به ملائکے ورکوي. او د روژے بدله به خدائ په خپله ورکوي. ځکه چه څه رنګ خدائ پاک خوراک څکاک نه کوي. دغسے روژه دار هم اوکړه. او د "اُجْزِیْ بِه" معنی دا هم شوے ده. چه د دے بدل کښ به زه خپل ځان ورکړم دا خومره لوئ انعام دے. چه بنده په لږه غونډے محنت خدائ پاک بذات خود اوګټي. په روژه زړه روښانه شي. او په ده د عباداتو نو سره د محبت دروازے پرانستے شي. خو دا کوم هغه روژه ده. چه په آدابو اوساتلے شي. د کومے ذکر چه په حدیث ۹ کښ راغلو نکے دے.

بعض امامان د مسواک په ماښام کښ کول منع وائي. ځکه چه دا بد بوئي خدائ ته محبوبه ده. نو دا به لرے کړے شي. خو احناف وائي. چه مسواک د کوي. د دے نه د معدے د لوږے بد بوئي مراد ده. د غاښو نو نه ده.

باقي ماهیان چه د روژه دار د پاره بخنه غواړي. نو د قرآن آیت دے. چه سَیَجْعَلُ لَهُمُ الرَّحْمٰنُ وُدًّا. چه د نیکانو سره به د مخلوقِ خدا محبت پیدا شي.

بل حدیث دے. چه هر کله خدائ د بنده سره د عباداتو په وجه محبت شروع کړي. نو جبریل ؑ ته اووائي چه ما د دے بنده سره محبت دے. ته ور سره هم محبت کوه. نو دے په اسمان کښ چغې وهي. چه د فلانکي بنده سره د خدائ محبت دے. تاسو ور سره هم محبت کوئ. نو د اسمان مخلوق ور سره محبت شروع کړي. تر دے چه دغسے ور سره د زمکے مخلوق محبت شروع کړي. او په وچه او په لوند کښ بنی آدم ځناور او ماهیان د ده سره محبت کوي. او د ده د پاره دعا ګانے کوي. د دوی په برکت او به وریږي. او ماهیان په اوبو کښ ځناور په ځنګلونو کښ په آرام ژوند تیره وي. دریم د جنت پولے کول دي. نو دا د رمضان د

راتلونه د څنګښ نه شروع شی. ځکه چه روژه دار په ير قدر من دے. نو د ده د پاره د په ولی ځائی انتظام کيدے شی.

څلورم د سرکښو شيطانانو ترل دی. چه خلق ګناهونه کم کوی. بلکه خو دا وو چه په دے عبادتونو، روژو او ختمونو شيطانانو ته خلافی زور لګولے وے. چه دا د دوی د خلاف کار وو. خو خدائے پاک شيطانان د دے نه منع کړی. او نسبتًا په دے مياشت کښ ګناهونه کم کيږی. ډير شرابيان وی چه په رمضان کښ شراب کم کړی. خو ګناهونه کيږی ضرور. ځکه چه قيد د سرکښو شيطانانو شوی دے او چه واړه شيطانان وی. هغوی به خپل کار څه ناڅه ضرور کوی. نو ګناهونه به کيږی. که چرته دا د سرکښ قيد نشته. نو دغلته هم دا مراد دی. بل دا ګناهونه اکثر د هغه خلقونه کيږی. چه يو لس مياشتے د ګناهونو عادت راغلی وی. نو د هغوی په زړونو کښ د ګناهونو سره داسے محبت پيدا شی. چه دا د دوی يو طبعی کار او ګرځی. نو په دی کښ د شيطان دومره دخل نه وی څومره چه د دوی د نفس او طبيعت دخل وی. او دغه ګناهونه بيا زړه ته تبيخ کړی. لکه خدائے پاک "کَلَّا بَلْ رَانَ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ" وائی. چه دے ګناهونو د دوی زړونه زنګ آلود کړل. ځکه د دوی دا خيرن خيرن زړونه ګناهونو ته مائل وی. او دوی ښه په بے پرواهئ دا ګناهونه کوی. او د دغه ګناه نه چه د ده عادة شوے دے. بل ګناه ته ميلان نه کوی. لکه شرابی ته که اووايے. چه ته د خنزير غوښه او خره نو دے دانه خوری. سره د دے چه دا دواړه يو قسم ګناه دے. نو د رمضان د مياشتے دا ګناه په اصل کښ د نورو مياشتو د دے ګناه هغه عادة دے. چه په دے مياشت کښ هم ځان ښکاره کوی. نو ده ته د شيطان ضرورت نشته. نو که د شياطينو نه هم مطلق شيطانان مراد شی. نو هم څه حرج پکښ نشته. شيطانان قيد دی. خو د ده خپل نفس په ده ګناه کوی.

په روژه کښ که لږ محنت اوشی. نو په ير ګنهګار د ګناهونو نه بچ کيدے شی ځکه چه د مبلغ مقابل شيطان نه وی. بلکه د هر بنده نفس وی. نو د يو دښمن سره مقابله د دوو په مقابله کښ آسانه وی.

او مولانا شاه محمد اسحاق رو وائي. چه دا دواړه احادیث صحیح دي. سرکښه
شیاطین د فاسقانو په حق کښ قید وي. او د صالحانو په حق کښ مطلق شیاطین
قید وي. باقي د ختم رمضان په شپه د روژه دار د مزدورۍ مزدوري په بخښنه
ورکیدے شي. او د لیلة القدر هغه انعام خوځان نه دے. الله پاک مونږ رضا
نصیب کړي. او که رمضان راشي چه نا راستي اونه کړو. او خدائي خپل کړو.

(۳) عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ
اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احْضُرُوا الْمِنْبَرَ
فَحَضَرْنَا فَلَمَّا ارْتَقٰى دَرَجَةً قَالَ آمِيْن
فَلَمَّا ارْتَقَى الدَّرَجَةَ الثَّانِيَةَ قَالَ آمِيْن فَلَمَّا
ارْتَقَى الدَّرَجَةَ الثَّالِثَةَ قَالَ آمِيْن فَلَمَّا
نَزَلَ قُلْنَا يَا رَسُوْلَ اللهِ لَقَدْ سَمِعْنَا
مِنْكَ الْيَوْمَ شَيْئًا مَا كُنَّا نَسْمَعُهُ قَالَ إِنَّ
جِبْرِيْلَ عَرَضَ لِيْ فَقَالَ بَعُدَ مَنْ أَدْرَكَ
رَمَضَانَ فَلَمْ يُغْفَرْ لَهُ قُلْتُ آمِيْن
فَلَمَّا رَقِيْتُ الثَّانِيَةَ قَالَ بَعُدَ مَنْ ذُكِرْتَ
عِنْدَهُ فَلَمْ يُصَلِّ عَلَيْكَ قُلْتُ آمِيْن فَلَمَّا
رَقِيْتُ الثَّالِثَةَ قَالَ بَعُدَ مَنْ أَدْرَكَ
أَبَوَيْهِ الْكِبَرُ أَوْ أَحَدَهُمَا فَلَمْ يُدْخِلَاهُ
الْجَنَّةَ قُلْتُ آمِيْن (حاکم)

د کعب نه د عجره ځوئ دے. روایت دے. دا
وے چه خوږ نبي علیه السلام او فرمایل چه
چه منبر ته را نزدے شئ. پس چه مونږ
ور نزدے شو. نو دوي په اوله پوړۍ خپه
کیښوده. او وے وئ آمین بیا په دویمه یې اووے
آمین بیا یې په دریمه خپه کیښوده او دوي اووے
آمین پس چه دوي راکوز شو نو مونږ اووے
چه د خدائي رسوله مونږ خوستا سو نه نن
هغه خبره واوریده. چه مخکښ مو نده
اوریدلے. دوي اووے. چه جبریل ځما مخے
ته راغے. او دوي اووے. چه هغه بنده دې
هلاک شي. چه رمضان بیا مومي او د ده نه
بخښنه اونه شي. نو ما وے آمین بیا یې په
دویمه اووے. چه هلاک دې شي هغه کس
چه ستا ذکر د ده په مخکښ اوشي. او دے درود اونه وائي ما وے آمین بیا یې
راته په دریمه اووے. چه هلاک دې شي هغه کس چه دواړه یا یو مور پلار بوډاګانې
بیا مومي. او دے د دوي په خدمت جنت ته لاړ نه شي ما وے آمین.

فائده:- درے خیرے دي او د جبریل د خولے خیرے دي. او بیا په هر یو د خوږ
نبي صلی الله علیه وسلم آمین دے. الله دې د دے خیرو نه مونږ اوساتي. که دا
قسم څوک وي. چه دا دریواړه کارونه ترے اوشي. نو د دوي په هلاکت کښ څه

شک دے. په درمنثور کښې دا سے دی. چه دَ دے آمین وئیلو خوږ نبی صلی الله علیه وسلم
ته جبریل علیه السلام اووے. دَ دے نه لا زیات اهتمام معلوم شه. (توبه ربه)
رمضان غونډے قدرمنده میاشت او دا په ګناهونو کښې تیروِل، دَ خدائ رحمت
دریږی او دَ دے نه جولئ نه ډکول. دے په دے ګناهونو دَ مغفرت نه محروم شه
او په رمضان کښې دَه چه ګرم بازار دے اولږه نیکی پکښې په ډیره خدائ اخلی
چه دَه په دے کښې دَ ځان دَ بخښنې کار اونه کړو نو په بله میاشت کښې به دے څه اوکړی.
دَه ته بیکار وو چه مونځونه تراویح او توبې یې دَ شپې روح عمل وے. او چه دا یې
اونه کړه نو دَ جبریل ع په خیرو کښې او دَ خوږ نبی علیه السلام په آمین کښې راغے.

توبه ربه څه بدبخته دے.

دویم دغه بنده دے. چه دَ خوږ نبی علیه السلام غونډے ذات دَ دَه په مخکښې
نوم واغستے شی. چه دَ دَه په برکت مونږ هر څه حاصلو. او اسلام او ایمان مو
دَ دَه په طفیل دے نو دے دَ دَه دَ پاره دَ خدائ نه رحم نه غواړی. دے واقعی
شقی او بخیل دے. دَه دَ جنت لاره هیره کړه. جهنم ته اورسیده. تر دے چه په
روایاتو کښې دَه ته بد دینه وئیلے شویدے. روایت دے. چه دا قسم بنده به دَ
خوږ نبی علیه السلام مخ مبارک نه وینی. او ولے به نه وی. چه دَ خوږ نبی محمد نو
په حال رحمونه زمونږ دَ پاره خاص خاصے دعاګانے او محمد نو دا بے پرواهی یل
په درود کښې دَ دیو نکی خیله ګټه ده. دَه بدبخته په درود نه وئیلو ځان ته نقصان
اورسوو. دَ دَه په یو درود خو خدائ لس ګڼا ره رحم کوی. ملائکے ورته
دعاګانے کوی. ګناهونه یې معاف کیږی. مرتبې یې زیاتیږی. دَ اُحد دَ
غره هومره ثواب ورکیدے شی. دَ شفاعت دَ دَه دَ پاره واجب ګرزیده دَ خدائ
رضا او دَ دَه رحم دَ خدائ دَ غصے امان، دَ قیامت دَ ورځے دَ سختو نه امان. دَ مرګ
نه مخکښې خپل ځائ لیدل. په درود دَ جوند دَ خوراک آسانتیا دَ فقیری لرے کیده.
خدائ او رسول ته نزدے کیده او دَ زړه نه منافقی او زنګ لرے کیده. دَ خلقو دَ
دَه سره مینه پیدا کیده دغسے په درود کښې ډیر نیری دی. فقهاء وائی. چه
یو ځل دا ره په عمر کښې درود وئیل فرض دی. او دَ خوږ نبی علیه السلام په نوم بعض علما

هر کله اردرود واجب وائي. او بعض په هر کله ار مستحب.

دریم دَ بو ړا کا نو مور پلار یا یو ائے دَ یو خدمت نه کول چه په دے دَ جنت دَ حقدار جوړیږی. په مباحو کارو نو کښ دَ دوی اطاعت ضروری دے. دَ دوی بے ادبی نه ده پکار. که مشرک وی نو هم دَ ده په مخکښ تکبر نه دے پکار. خپل آواز دَ دوی دَ آواز ونو نه پورته کول نه دی پکار ده ته دِ په دے نوم آواز نه کوی. خو دَ نیکئ په وینا او دَ بدئ نه په منع کښ به نرمی نه کوے. که وینا قبوله نه کړی نو بیا دِ هم ورسره ښه سلوک کوی. او دَ دوی دَ هدایت دعا دِ کوی. غرض دَ دوی دِ ډیر عزت کوی. دَ جنت په دروازو کښ دَ مور پلار دَ تابعداری دروازه ده. دا ستا خوښه ده. چه ته دَ دے حفاظت کوے که دا ضائع کوے. خوږ نبی صلی الله علیه وسلم دَ دوی په باره کښ وائي چه دوی ستا جنت او دوزخ دے. په رضا کښ یې جنت او په خفګان کښ یې دوزخ دے. ځوئ چه په محبت مور پلار ته اوګوری نو دَ قبول حج هومره ثواب به یې او شی. دَ شرک نه علاوه دَ مور پلار دَ نافرمانئ دَ نه معافی کیدو په باره کښ روایات راغلی دی. خوږ نبی علیه السلام دَ مور دَ خدمت دَ پاره یو ځوئ دَ جهاد نه منع کړے وو. دَ مور دَ خپولاندے یې ورته جنت او وے. دَ الله رضا دَ پلار په رضا کښ خوږ نبی علیه السلام او ښودہ. که دَ چا نه مور پلار خفه مړه وی. نو اولاد دِ دَ دوی دَ پاره ډیرے بخښنے غواړی. نو دے به تابعدار او شمیرلے شی. بل دَ ده دَ دوستانو سره ښه سلوک دَ پلار سره دَ تابعدارئ برابره خبره ده.

(۳) عَنْ عُبَادَةَ ابْنِ الصَّامِتِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ یَوْمًا وَحَضَرَ رَمَضَانُ اَتَاکُمْ رَمَضَانُ شَهْرُ بَرَکَةٍ یَغْشَاکُمُ اللّٰهُ فِیْهِ فَیُنْزِلُ الرَّحْمَةَ وَیَحُطُّ الْخَطَایَا وَیَسْتَجِیْبُ فِیْهِ الدُّعَاءَ یَنْظُرُ اللّٰهُ تَعَالٰی اِلٰی تَنَافُسِکُمْ فِیْهِ وَیُبَاهِیْ بِکُمْ مَلٰٓئِکَتَهٗ فَاَرُوا اللّٰهَ

دَ عبادة رض نه چه دَ صامت ځوئ دے روایت دے چه خوږ نبی علیه السلام یوه ورځ وے چه رمضان راغے. او دا دَ برکت میاشت ده په دے کښ خدائ ستا سو طرف ته توجه کوی. او خاص نعمت نازلوی. خطائي معاف کوی او دعا قبلوی. ستاسو مینه کوری او ملائکو ته په فخر وائي. پس تاسو خدائ پاک ته خپله

مِنْ اَنْفُسِكُمْ خَيْراً فَاِنَّ الشَّقِيَّ مَنْ حُرِمَ فِيْهِ رَحْمَةَ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ (طبرانی)

نیکی او خیبی ید نصیب هغه کس دے چه په ډیمیاشت کښ دخدای د رحم نه محروم پاتے شی.

فائدہ:- تنافس دے ته وائی. چه د یو بل نه په حرص سره مخکښ کیږی نو دوی ته دعوت ورکیدے شی. چه راشئ دا مو په نیکو کښ د یو بل نه د مخکښ کیدو وخت دے. خپل خپل کمال ښکاره کړئ. مولانا لیکی چه زه خو دومره د کار نه یم. خو څما د کور زنانه سره د کور د کارونو په دے مقابله کښ اچے وی. او لس پنځلس پارے قرآن شریف روزانه تلاوت کوی. خدای د دا همت نو لو نارینو او ننانه ؤ ته ورکړی. (آمین)

(۵) عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِنِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلی اللہ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ عُتَقَاءَ فِيْ كُلِّ يَوْمٍ وَ لَيْلَةٍ يَعْنِيْ فِيْ رَمَضَانَ وَاِنَّ لِكُلِّ مُسْلِمٍ فِيْ كُلِّ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ دَعْوَةً مُسْتَجَابَةً —!!

د ابوسعید نه روایت دے ده وے چه خوږ نبی صلی اللہ علیه وسلم وے. چه د رمضان په هره ورځ او هره شپه کښ خدای د دوزخ قیدیان آزادوی. او په هره شپه او هره ورځ کښ د هر مسلمان دعا قبلیږی —!!

فائدہ:- په بعض روایا تو کښ د دعا د قبلیدو وخت د روژه ماتی وخت ښودلے شوید ے. ولے موږ په دے وخت کښ په خوراک سکاک داسے اخته شو. چه دعا رانه د سره هیره شی. او د روژه ماتی هغه دعا ته موهم خیال پاتے نشی کوم چه داده. اَللّٰهُمَّ لَكَ صُمْتُ وَبِكَ آمَنْتُ وَعَلَيْكَ تَوَكَّلْتُ وَعَلٰى رِزْقِكَ اَفْطَرْتُ چه خدایه ستا د رضا د پاره م روژه نیولے وه او په تا م ایمان راوړے وو. او په تا م توکل دے. او ستا په راکړی رزق روژه ماتوم.

او په بل د عمرو بن العاص په روایت کښ دا دعا ده. چه اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْئَلُكَ بِرَحْمَتِكَ الَّتِيْ وَسِعَتْ كُلَّ شَيْءٍ اَنْ تَغْفِرَلِيْ. اے خدایه ستا د هغے رحمت په برکت چه په هر څیز کیدے شی دا غواړم چه ما او بخے. او بعضے دا دعا د خوږ نبی صلی اللہ علیه وسلم نه نقل کوی. يَا وَاسِعَ الْفَضْلِ اغْفِرْلِيْ اے فراخ فضل کونکیه ما ته بخښنه اوکړے.

هر روژه دار د د خپل خپل ضرورت په برابر سوال کوی او مولانا ذکریا وائی

چه که زه مو یه دعاګانې یاد کړم نو سمه به وی. سوالګرے یم اود سوالګری سوال قبلول پکار دی. پښتانه د ما عاجزیا دوی ځکه چه تا سو ته خوما پښتو کښې دا دعاګانے اولیکلے

ے که اشاره د د چینے د فیض نه ماته اوشی ؛ ستا عنایت د سوال ځما به لا بل چا ته اوشی

(۲) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ ثَلٰثَةٌ لَا تُرَدُّ دَعْوَتُهُمْ الصَّائِمُ حَتّٰی یُفْطِرَ وَالْاِمَامُ الْعَادِلُ وَ دَعْوَةُ الْمَظْلُوْمِ یَرْفَعُهَا اللّٰهُ فَوْقَ الْغَمَامِ وَیُفْتَحُ لَهَا اَبْوَابُ السَّمَآءِ وَیَقُوْلُ الرَّبُّ وَعِزَّتِیْ لَاَنْصُرَنَّكَ وَلَوْ بَعْدَ حِیْنٍ. (احمد)

د ابو هریره رض نه روایت دے. دا وے چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے. چه د درے تنو دعا نه بیرته کیږی. د روژه دار تر روژه ماتی او د منصف حاکم. او د بے ګناه مظلوم. دا به وریځو کښې بره لاړه شی. او دوی ته د اسمان دروازے پرانستے شی. او خدائ به خپل عزت قسم اوخوری چه زه به په مدت او کړم اګر که روستو وی

فائده: عائشه رض بی بی وائی. چه په رمضان کښې به د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم رنګ بدل شه. او مونځ کول به یے زیات کړل. او به دعا کښې به یے ډیره عاجزی کوله او ویره به پرے غالبه وه. او یو بل روایت کښې دی. چه د رمضان تر ختمیدو به بستره ته نه راتله. یو روایت دے. چه خدائ پاک په رمضان کښې د عرش پورته کونکو ملائکو ته اووائی. چه خپل عبادت پریږدئ. تاسو د روژه دارو په دعاګانو آمین وایئ. خو کله کله د بنده دعا قبوله نه شی. نو مونږ ګله مند شو. مونږ ته د دعا په باره کښې پوهه پکار ده. خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وائی. چه کوم بنده د چیلولئ پر نکو نکے یا د ګناه سوال کو نکے نه وی. نو ده ته به دعا کښې د درے خیزو نو نه یو خیز ضرور بیا موندے شی. یا د غه خیز چه کوم دے غواړی. یا به د ده نه څه سختی لرے شی. یا یه په آخرت کښې ده ته ثواب ورکړے شی.

یو حدیث دے. چه په قیامت کښې به خدائ بنده را او غواړی او ده ته به او وائی. چه ما تا ته د دعا حکم کړے وو او د دے د قبلولو وعده م هم کړے وه. نو تا دعا کړے ده؟ دے به او وائی چه اد ما خو سوالونه کړی وو. نو خدائ پاک به او وائی چه ما خو ستا ټولے دعاګانے قبولے کړی دی. تا تکلیف لرے کیدو غوښته. نو ما د دنه د تکلیف لرے کړو. تا وے چه ځما نه غم لرے کړه. نو ما ستا د پاره په دے ثواب ته

اولیکل ۔ خوږ نبی صلی اللہ علیه وسلم وے چه ده ته به د دعا گانو قبلیده په دنیا یا په آخرت کښ اوخو وے شی ۔ دے چه د آخرت ثوابونه اووینی ۔ نو دے به اووائی چه که څما یو ہم دعا گانے داسے وے ۔ چه صرف په آخرت کښ پرے ثوابونه راکړے شوے وے ۔ نو ښه به وه ۔ نو دعا ډیره قیمتی څیز دے ۔ که چرے ستا د دنیا سوال قبول نه شی نو ته پرے مه خفه کیږه د آخرت ثوابونه د دے نه ښه دی ۔

بل مونږ په خپلو فائدو نقصانونو نه پوهیږو ۔ کله کله مونږ یو څیز غواړو او هغه د خدائی په علم کښ څمونږ د پاره ښه نه وی ۔ ځکه مونږ ته خدائی هغه نه ورکوی ۔ او خدائی پاک ښه پوهیږی مونږ خپل خیر او شر نه پیژنو ۔

او دا بله نادانی ده ۔ چه کله کله په قهر کښ مور پلار خپل اولاد ته ښیرے اوکړی او هغه د دعا د قبلیدو وخت وی ۔ نو د دوی دعا قبوله شی ۔ بیا چغے سورے وهی سر د دے چه دا خو د دوی دعا وی ۔ نو دوی ته په خیر وکښ صبر پکار دے ۔ چه بیا سر نه شو کوی ۔ خوږ نبی علیه السلام هم وخت او خاصکر په رمضان کښ د ښیرو نه منع کړیده ۔ ځکه چه په دیکښ دعا گانے قبلیږی ۔ په دیکښ د بخنے غوښتو نکی ته بخنه کیږی ۔ او سوالگرے ناامراده نه وی ۔ د ابن مسعود رض په روایت کښ راځی ۔ چه د رمضان په هره شپه کښ اعلان کونکے دا اعلان کوی ۔ چه اے د خیر تلاش کونکیه ! مخکښ راشه ۔ خیر او غواړه او اے بدی کونکیه ! بدی پریږده ۔ سترگے او غړوه ۔ بل دے وائی ۔ چه څوک د بخنے غوښتونکے شته ۔ چه بخنه ورته اوشی ۔ توبه او ښکونکے شته ۔ چه توبه یے قبوله شی ۔ څوک دعا کونکے شته چه دعا یے قبوله شی ۔ خو د دعا د قبلیدو په شرائطو هم ځان پوهه کړئ ۔ چه دا شرائط نه وی نو دعا نه قبلیږی ۔ د حرامے غذا نه پرهیز شرط دے ۔ خوږ نبی علیه السلام وائی ۔ ډیر خلق دے سوالونه کوی ۔ او خوراک سکاک او جامے یے حرام دی ۔ نو د دے سوال کله قبلیږی ۔ مورخین لیکی ۔ چه په کوفه کښ د دعا قبلیدو نښکے تولے وو ۔ چه ظالم به حاکم شه نو دوی به ورته ښیرے اوکړے ۔ نو هغه به هلاک شه ۔ حجاج ظالم چه باچا شه نو ده یوه ډوډئ اوکړه

او دا ئتو لگے پۀ دے پۀ ډوډۍ ته را اوغوښتنه۔ دوی چه د خوراک نه اوزګار شو۔ نو محجاج اووے۔ چه ښه شوه۔ چه زۀ د دوی د خیرو نه بچ شوم. ځکه چه د دوی په کیږه و کښ حرام خوراک اورسیده۔ تا سولږ د خپلے زمانے د حلالے روزۍ ته اوګورئ۔ زمونږ خلق عوام او خواص د سود د جواز کوشش کوی۔ ملازمان رشوت او سود ا کر دهوکه غوره ګنړی۔ دا قسم خوراک کونکی که وائي۔ چه زما دعا نه قبلیږی۔ چه دا ولے؟ نو د دے جواب د ده په کیږه کښ دے۔ (نو به ربه)

(۹) عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللہِ صلعم اِنَّ اللہَ وَمَلٰٓئِکَتَہٗ یُصَلُّوْنَ عَلَی الْمُتَسَحِّرِیْنَ۔ (طبرانی)

"د ابن عمرؓ نه روایت دے۔ چه خوږ نبی صلی اللہ علیہ وسلم وے۔ چه اللہ او د هغه ملائکے د پیشمنی په کونکو رحمتونه نازلوی۔

فائدہ:۔ د روژے دومره برکات دی۔ چه د روژے د پاره خوراک هم د رحمتونو د نازلیدو سبب اوګرځیده۔ او په دے ثواب ورکیدے شی۔ علامہ عینی د دے سحری د او لسو صحابو نه فضیلت احادیث نقل کړیدی۔ او د دے په مستحب والے ئے اجماع نقل کړے ده۔ بعض خلق د ناراستیا نه دا پریږدی۔ او بعض د تراویحو نه روستو ډوډۍ اوخوری۔ او بیا سحری ته نه راپا سی۔ په دے د ثواب نه محروم شی۔ "سحری" صبا ته نزدے خوراک ته وائي۔ او د نیمے شپے نه د دے وخت شروع کیږی۔ کشاف د شپے د آخری د شپږمے نه د دے شروع منی۔ او په سحری کښ روستو والے غوره دے۔ خو دومره نه چه د صبا شک پیدا شی۔ خوږ نبی صلی اللہ علیہ وسلم وے۔ چه زمونږ او د یهودو نصاری د روژے فرق په پیشمنی دے۔ چه هغوی دا نه کوی او مونږ ئے کوو۔ یو خوږ نبی علیہ السلام وے۔ چه په درے څیزونو کښ برکت دے۔ د جمع په کارو کښ، او په مانه ډوډۍ کښ۔ دریم د پیشمنی په خوراک کښ۔ خوږ نبی صلی اللہ علیہ وسلم به چه چا صحابي ته د سحری دعوت ورکوو۔ نو دا ئے ویئلے دے۔ چه راځه د برکت خوراک اوخوره۔

خو بِ نبی صلی الله علیه وسلم به وے. چه سحری اوکړه. چه په روژه قوت حاصل کړئ. او دَ غرمے خوب اوکړه. چه دَ شپے په شوګیره کښ مدت اوکړے او دَ دے برکتی خوراک دَ نه پر بخود و حکم به یے کوو. تر دے چه که نور څه نه وی. نو یوه چواره خوا وخره. یا یو ګوټ اوبه اوڅکه. دا څه خُرما او ثواب لوو نیکے کار دے. خو دَ زیاتی کمی خیال ساتل پکار دی. هسے نه په ډیر خوراک اپړرتی کوئ او هتوله ورځ درته ډیره خراب خراب کیږی. یا دَ لږ خوراک په وجه دِ قلیے سحر نیکیږی. نو په سحری په عبادت کولو کښ قوت حاصلیږی. او بنه په توجه عبادت کوئ. او او کے بنده یه خویه شی. سوالګرے او د تی هغه ورته خبرے اوکړی. او دَ ده دعا قبوله شی. چه بنده موړ وی. نو دَ دے په حوصله وی. دَ چم کا ونو غریب ته څه ورکړی. نو هغه ورته دعا اوکړی.

خو صوفیان وائی. چه په روژه کښ خو مطلب دَ کیږے او دَ شهوت ماتول دی. او په سحری کښ دوی نه ماتیږی. نو دَ دے جواب دادے. چه دادِ په اندازه کوی. چه یو طرف ته روژه نیوے شی. او بل طرف ته یے شهوت او ډیر خوراک کم شی.

نو اصل خبره دا شوه. چه په روژه ماتی او سحری دواړو کښ کے بنه دے. خو دَ دین علماء او طلبا دَ پاره کے نه دے پکار. ځکه چه په دے به دَ دوی په دینی شغل کښ کے را شی. او دا بنه خبره نه ده. د غیبے دَ ذاکرینو هم دا حکم دے. دغه وجه ده چه خو بِ نبی صلی الله علیه وسلم دَ جهاد تلونکو ته او وے. چه په دے سفر کښ روژه نیول نیکی نه ده. سره دَ دے چه دا دَ رمضان میاشت وه. نو دَ دے به خیال ساتلے شی. هسے نه چه لږ خوراک ډیر اهم دینی کار ته نقصان اورسوی. صوفیان وائی چه که روژه کښ بنده دَ رمضان په میاشت کښی اوږے او سیږی. نو تر را تلو نکی رمضان به دَ شیطان دَ زور نه بچ وی. دَ عوارف نه په شرح دَ احیاء کښ نقل دے. چه سهل بن عبد الله تستری به پنځلس ورځے کښ یو ځل ارخوراک خوړو. او افطار به یے دَ سنتو په وجه په یوه نمړئ ډوډئ او یو ګوټ اوبو کوو.

دَ حضرت جنیدؒ به همیشه روژه وه۔ خو دَ بنه نیک دوست دَپاره به یې روژه ماته کړه۔ او دَا به وے۔ چه دوی سره خوراک دَ روژے نه زیات ثواب لری۔ دَ دے قسم خلقو به په لوړه نفس په ادب کوو۔ خو دا پکښ شرط دے۔ چه په دے لوړه په دینی اهم کارکښ نقصان را نشی۔

(٨) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ رُبَّ صَائِمٍ لَیْسَ لَهٗ مِنْ صِیَامِهٖ اِلَّا الْجُوْعُ وَرُبَّ قَائِمٍ لَیْسَ لَهٗ مِنْ قِیَامِهٖ اِلَّا السَّهَرُ (ابن ماجة)

دَ ابو هریرهؓ نه روایت دے۔ دَه وے چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے۔ چه ډیر روژه دار داسې دی لوږه تیږوی او ډیر شوکیره کوونکی صرف شوکیره کوونکی وی نور هیڅ نه وی۔

فائده:۔ دَ دے بعض علماؤ دا یې بندهٗ مطلب بنودلے دے۔ چه روژه اولری خو بیا روژه په حرام مال ماته کړی۔ نو دَ کاچه څومره دَ روژے ثواب شوے وو دَ دے نه زیات گناه دَ حرام مال په خوړو اوشو۔ او تشه تهوله ورځ لوږه یې تیره کړه۔ یا روژه خو لری خو په پردی غیبت کښ لګیا وی۔ یا دا روژه دار د هیڅ قسم گناه نه پال نه کوی۔ دَ خوږ نبی علیه السلام کلام جامع دے۔ دا ټول احتمالات پکښ راتلے شی۔

او دویم یو بنده تهوله شپه ویخ وی عبادت کوی۔ خو دَ تهو قو تهقالو دَپاره پکښ غیبت هم اوکړی۔ نو دغه عبادت یې تشه شوکیره شوه۔ یا نفلونه یې اوکړه خو دَ سحر فرض مونځ ترے لاړشه۔ قضا شه۔ یا دا شوکیره یې دَ ریا او شهرت دَپاره اوکړه۔ نو دا هم بیکاره ده۔

(٩) عَنْ اَبِیْ عُبَیْدَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَقُوْلُ اَلصِّیَامُ جُنَّةٌ مَا لَمْ یَخْرِقْهَا۔ (نسائی)

دَ ابو عبادهؓ نه روایت دے۔ دَه وے ما دَ خوږ نبی علیه السلام نه اوریدلی دی۔ چه روژه ډال دے ترڅو چه دا اونشلوی۔

فائده:۔ روژه دَ شیطان نه بنده داسې بچ کوی۔ لکه ډال چه دَ توورے دَ گذار نه بنده ساتی۔ یا روژه دَ دوزخ دَ عذاب نه بنده بچ کوی۔ اصحابو دَ روژے دَ شلیدو دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوکړو۔ نو خوږ نبیؐ اووے۔ چه دا په غیبت او دروغو شلیږی۔ او ضائع کیږی۔ الله دِ رحم اوکړی۔ خدائے خبر دے چه څمونږ د روژے به څه حال وی۔ غلبیل به وی۔ ځکه چه مونږ خو په روژه کښ هغه

کړي وړے وایو. چه توبه دې. بعضې علماء خو وائي. چه دروغ او غیبت د خوړاک سخاک هسې دی. په دے روژه ماتیږی. خو جمهور علماء وائي. چه ماتیږی نه خو بے برکته کیږی. زیرګا نو د روژے د پاره شپږ خیزے ایښی دی. اول نظر دے. چه بے ځایه کاته به نه کوی. تردے چه خپلې بی بی ته به هم په شهوت سره نه ګوری. د عشې د لوبو تو مقاماتو ته به نه ګوری. خوږ نبی علیه السلام نظر ته د ابلیس غشې وئیلي دے. چه د دے بے ځایه نظر نه بنده بچ شی. نو د ده په زړه کښې داسے ایمانی رڼا پیدا شی. چه د دے خوږ والے په زړه کښې بیا مومی "بے ځایه کاته" د دے مطلب دا دے. چه کوم کاته تا د خدائ نه غافله کوی اویل طرف ته دِ چرځوی. دویم ژبه ده. دا د دروغو، چغلۍ، بے فایدے خبرو غیبت، کنځلو، جهګړو نه ساتل. که څوک در سره جهګړه کوی او جهګړ مار هو خیا ردی. نو ده ته دِ او وائي. چه زه روژه دار یم. دا جهګړه نه کوم. او که بے وقوف وی نو ځان ته دِ او وائي. چه زړه خفه کیږه مه. زه جواب نه ورکوم زه روژه دار یم.

د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې د دوو ښځو روژه وه. او د لوږے په وجه مرګ ته نژدے شوے. خوږ نبی علیه السلام خبر شه. دوی د دے دواړو ته یوه پیاله ور اولیږله. چه په دے کښې قے اوکړئ. دوی دواړو د غوښو د پو ټوټے اوکړو. او تازه وینه یے او غورزوله. خلق حیران شه. خوږ نبی علیه السلام ورته اووے. چه دوی په حلال خوراک روژه نیولے وه. او حرام خوراک غیبت یے اوخوړ. دا د مړو غوښے دی. په غیبت کولو بنده ته روژه ډیره ګرانه معلومه شی. ځکه دا ښځے مرګ ته نژدے شوے. دغه رنګ نور ګناهونه په بنده دا روژه د غر هسے درنه کړی. تا سو او ګورئ چه پرهیزګاران هم د روژے پروا نه لری. او فاسقان په روژه کښې دا اسویلی او پوکی کوی. وائي چه مړ شوم. نو د روژے د آسانتیا علاج ګناه نه کول دی. خاصکر غیبت خو روژه شلوی. قرآن غیبت ته د مړو غوښے خوړل وائي. یو ګذار خوږ نبی علیه السلام څه خلقو نه اووے. چه

تا سو په غابنو نوکښې تیلے خلال او وهئ. دوی اوکړه چه نن خو موږ. غوښه خکلې هم نه ده. خوږ نبی علیه السلام ورته اووے. چه تاسو د فلانکی غوښے خوړلی دی. دوی ته معلومه شوه چه ښه دا موږ د دوی غیبت کړے دے —

خدائ پاک دِ موږ د دے مرض نه خلاص کړی. زموږ خو نن مجلس بے له دینه نه ګرمیږی. عوام خو پریږده خواص. دنیا دار خو څه کوے دیندار ان او د دوی مجلسونه جلسے او حلو سونه د دے نه کُمُم خالی وی. او دا ئے لا او کوی چه دے ته غیبت هم نه وائی. خوږ نبی علیه السلام وائی چه غیبت دے ته وائی. چه یو بلد کا موجود نه وی. او د ده سپکاوے بیان شی اکھر که دغه خبره په ده کښې وی. ځکه چه دا پکښې نه وی او ته یے وایئ نو دا خو تهمت دے. دا د غیبت نه هم لوئ ګناه دے.

خوږ نبی علیه السلام په دوو قبرونو باندې تیر شو او فرمایل. او دوی او دے چه په دے یو د غیبت په وجه عذاب دے. او دے بل په د بولو نه ځان نه ساته.

خوږ نبی صلی الله علیه وسلم د سود د اویا ڈنه زیاتے درجے بیودلی دی او د ټټولو نه آسانه او سپکه د مور سره د زنا برابر ده. او یوه روپئ د سود د پنځه دیرشو زناګانو نه زیاته سخته ده. او د ټولو نه زیات سود د بل بے عزتی کول دی.

نن د ساځ دیر انتخابات روان دی. تا سو لیږ د عواموا و خواصو مجلسو نو، جلسو او جیرګو ته لاړشی چه د دے پته درته اولیږی. چه زموږ د غیبتونو تهمتونو او بد د رد و کنځلو په یو بل د ټټو توانه ازه درته اولیږی.

شعر - کبر نادانی او جهالت کینه هرځائے ښکاری
بغض او ریا غیبت دروغ بلا بلا ښکاری

دا سے مرض شته چه کے په موږ کښې په دا شپیلو ځاو دے یې موږ ترے خدا یه جوړ کړے کړے څاره پوړه ځمونږ؟ نا کړے موږ ته زړه کا سلیم او جوړ کړے ته زموږ مریض.

دریم غوږ دے. کوم خبره چه وئیل نه وی پکار. هغه اوریدل هم نه وی پکار.

خو بیا نبی علیه السلام د غیبت ویونکی او اوریدونکی یو شان گنهگار بیانوی.

خلورم باقی اندامونه بچ ساتل دی. لکه لاس د ناجائزو شیزو ستود نیوو نه. پښے د ناجائز مقام د تلو نه. دغه رنگ نور اند امونه بچ کول پکار دی. دغه رنگ کیږه د شکی شیزونو نه ساتل. یو بنده چه روژه ساتی. او په حرام مال یې ماته کړی. نو دا داسے شوه لکه یو مریض دارو اوخوری خو په دیکښو لږه سنکهیا زهر و اچوی. نو دا دارو خو ښه دی. ولے د زهرو سره کیږ خو بنده هلاکوی.

پنځم د روژه ماتی په وخت کښ په ډکه کیږه خوراک نه کول. ځکه چه د روژے غرض خو شهوت او ځناورتوب روکول دی. او نورانی او ملکوتی قوت پیدا کول دی. یو ولس میاشتے بنده ډک په ډک خوراک کړیدے نو که یوه میاشت بنده داکیږه په لږ خوراک عادت کړی. نو کومه گرانه خبره ده. ولے موږ په روژه ماتی کښ د لویږے د قضا نه زیاته بدله دا وگرزو. او په سحری کښ دوباره اوخورو. چه دوباره خوراک مو په تیرو یوولسو میاشتو کښ نه وی کړے. ځکه امام غزالی وائی. چه د ابلیس قهر او د نفس زور په ډکو ډکو کیږو کار ماتیږی. که دغه زموږ روژه ماتے او پشمنے وی. نو د خو دا قدرے مطلب شه. چه موږ د خوراک وخت بدل کړو. نور څه کے چه د روژے مطلب دے هغه اونه شه. بلکه مالداران خو هغه خوراکونه په روژه کښ تیاروی. چه په ټول کال کښ د دے هیڅ و خیال نه لری. په دے خوړو زیږو، مالگینو او تروو ترخو قوت شهوانی لا زیات په جوش کښ شی. او د روژے هغه مطلب د سره ورک شی. خو بیا نبی وائی. چه شیطان په بنده کښ د وینے هسے گرځی. نو د ده بند یز په لوږه کیږی. چه نفس اوږے وی نو نور اند امونه ماړه وی. او چه نفس موړ وی نو نور اندامونه اوږی وی. بل په روژه خوځان د نقیرانو سره مشابه کول مطلب دے. نو هر کله چه موږ بچی او زلوبئ په سحری کښ په ډکه کیږه اوخورو. نو تر ماښام په کله اوږی شو. او چه اوږی نه شو. د

فقیرانو سره موکله مشا بهت راغے. داخو به هله وی. چه د بنده په
زړونو کښ د لوږے ګرمی او بے تابی راشی. نو فقیری به او پیژنی. د
بستر خانی سره یو بربنډ سړے راغے. سره د دے چه جانے یې په غیږ
کښ دے. ده ورته اووے چه دا د جامو د اغوستو وخت دے که د ویستو.
ده وے زه غریب یم. د فقیرانو سره نور مدت نه شم کولے نو ما وے
چه د دوی حسے او رپیږم چه د دوی سره هم یو شان والے خوراشی. په
دے کښ په بنده کښ دا صفت پیدا شی. چه بیا به دوی ته خوراک سڅاک
جوړے جامے ورکوی. او دے به پوهه وی. چه لوږه او بربنډه ډیر
ګران کار دے. مانې سختی لیدلے ده. داغریب به واقعی په تکلیف کښ
وی. خوبه نبی علیه السلام ته زیو لوخی ډک والے دومره ناخوښه نه وو.
خومره چه دوی ته ډکه ګیډه ناخوښه ده. خوږ نبی علیه السلام
به وے. چه دوه ځلور نمړئ او خره چه ملا د پرے نیغه شی. او
که داسے خوراک اوکړے. چه ګیډه درے حصے کړے. په یوه کښ
خوراک په یوه کښ او به دریمه خالی وی نو ښه به وی. په دے کښ
څه خیر وو که چه دوی به ډیرے ډیرے ورځے لوږه ساتله. او پرله
پسے روژے به یې ساتلے. مولانا خلیل احمد صاحبؒ به ماښام او سحری
کښ یو نیم چپاتے خوړو. او دوی به وے. چه زه نه او ږے کیږم.
داخو د دوستانو په خاطر ډوډئ ته کښینم. شاه عبدالرحیم صاحبؒ
رائیپوری به ټنه چائے څکله. دا د دے بزرګانو په روح کښ موبړوالے
وو. د جنت د نعمتو نو خوند ولو. نو د ډوډئ نه بے پرواکړی وُو.
دوی به سره د نه خوراک نه کمزورتیا نه محسوسوله. الله د زمونږ
د دوی تابعداری نصیب کړی. آمین) سه

سعدی.- کله پوئ دی کیګوه د روح پحال ؛ بے خبره دی چه ډیره ډیره خودی
شپږم دا چه دے د هر وخت په دے ویره کښی وی. چه د ده دا
روژه به د قبول قابله وی که نه. د غه خیال په هر عبادت کښ پکار دے.

دے دِ پریږدی چه هسے نه دا څما په مخ را او ولیشتے شی. خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وائی - چه ډیر قرآن لوستونکی دی. چه قرآن پرے لعنت وائی - خوږ نبی علیه السلام فرمائی. چه اوله پیشی به په قیامت کښ د شهید او د سخی او د عالم کیږی. او چه د دوی شهادت د شجاعت په خاطر او سخاوت د شهرت په خاطر او علم د علامه والی په خاطر یعنی د نوم د پاره وی. نو دوی به په مخے دوزخ ته او غورزولے شی. دا نو لے د بدبختی میوے دی. الله دِ مونږ د دینه بچ کړی. نو روژه دار دِ سوالونه کوی. چه خدایه دا څما روژه ته د خپلے رضا د پاره اوګرځوے. خو دا امید دِ هم لری. چه خدائی رحیم کریم دے. بےحده مهربان دے. دے که او غواړی. نو ناقص په کامل اغښتے شی. او به ګناه هم ثواب ورکولے شی. نو کیدے شی چه څما دا بےبنه روژه قبوله کړی.

دا شپږم خبره د عامو صالحانو د پاره دی. د خاصو مقربو خلقو د پاره اووم شرط هم دے. چه زړه ئے د خدائ نه بل خوا نه ګرځوی. د روژه ماتی او غوړو زیږو نکرونه دِ نه کوی. ځکه چه دا یو قسم د خدائ د رزق په وعده شک دے. تردے چه په نیکانو کښ دا عادت وو. چه د روژه ماتی نه مخکښ به دوی له که څه څیز چا راوړه نو دا به ئے مخکښ لرے کړو. چه دے ته فکر نه وی. او به توکل کښ کمے رانشی. خو دا کار و نه د لویو مقربینو دی. مونږ دا کله کولے شو. خدای پاک چه وائی چه کُتِبَ عَلَیْکُمُ الصِّیَامُ نو دا روژه به تولو اندامونو فرض وه او د ظاهری اندامونو نه علاوه په نفس کښ حرص هم نه دے پکار. د شهوتونو نه بچ کیده. د زړه روژه د دنیا محبت لرے کول دی. د روح روژه د آخرت د خوندونو نه هم پرهیز دے. خلاصه دا ده. چه د غیر الله نه هرو خیال نه دے پکار.

(۱۰) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ اَفْطَرَ

د ابو هریرة رض نه روایت دے. چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے چه چا یوه ورځ

يَوْمًا مِنْ رَمَضَانَ مِنْ غَيْرِ رُخْصَةٍ وَلَا مَرَضٍ لَمْ يَقْضِهِ صَوْمُ الدَّهْرِ كُلِّهِ وَإِنْ صَامَهُ (احمد)

د رمضان یې د شرعي عذر نه او ناجوړتیا نه د قصده روژه اونه لری. نو دا یې د ټولې زمانې په روژه قضا نه شي.

فائدة:- بعض علماء لکه حضرت علیؓ وائي. چه چا د رمضان روژه بې د شرعي عذر نه پریښوده. نو د دې هېڅ قضا په نورو ورځو کښ نه شي کید ې. که ټول عمر روژه اونیسي نو هم. خو جمهور علماء وائي. چه که ده روژه او نه نیوه. نو قضا د یوې په یوه کیږي. او که ده شروع اوکړه او بیا یې د قصداً بې وجې ماته کړه. نو د دې قضا په یوه ورځ او په دوو میاشتو روژو د کفارې په رنګ کښ کول په کار دي. په دې به یې فرض ادا شي. خو د رمضان هغه برکت یې پلاس نه شي راتلې. کوم چه وو. دا چه قضا یې اوکړي. او چه د سره نه د رمضان روژه لری او نه یې قضا کوي. لکه د دې زمانې فاسقان چه کوی نو دې لوئ ګمراه دې. ځکه چه روژه د اسلام په ارکانو کښ ده. د اسلام پنځه ارکان دي. اول توحید. بیا مونځ، روژه، زکوٰة او حج. چیر په نامه مسلمانان د مسلمان په نوم په سرکاری کاغذاتو کښ لیک دي. خو په خدائي فهرست کښ د دوی نوم نشته.

ابن عباسؓ د اسلام درې ارکان وائي. کلمه شهادة. مونځ او روژه. په دې کښ که یو هم نه وي. نو دې کافر دې. او د ده وژل دې حلال کیږي. خو بعض علماء د دې سره د دینه انکار کړې دې. هغوی وائي. چه دا نه منی نو هله. دې قسم خلقو له په کار دي. چه د خدائي د قهرنه اویریږي. ځکه چه د مرګ نه خلاصې نشته. د دنیا دا ورول چال د ختمیدو دې. د فائدې کار د خدائي د حکم تابعداري ده. بعض فاسقان وائي. چه روژه به هغه څوک لری. چه د خوراک ورکره څه نه وي. نو دا د کفر کلمه ده مرګې نه بچ او سیده په کار دي. یاد اوائي چه د خدائي پاک زمونږ په لوږه کښ څه غرض دې. په دې قسم خبرو بنده تباه کیږي. که یو فرض ادا نه کړی نو په دې نه کافر کیږي. ولې د دین په وړه خبره ټوقه کول بنده کفرته رسوي

په فرض نه کولو بنده فاسق ګڼل کیږي. چه ددې سزا به بیا مومي. علماء لیکي. چه اسلامي حکومت موجود وو. نو به ښکاره روژه خوړونکي د قتل کړیشي. او عوام خود دوی ته د کرکې په نظر ګوري. الله د مونږ ته د نیکانو په طفیل د هر قسم نیکۍ توفیق راکړي. (آمین)

دا لس احادیث د کتونکو دپاره کافي دي. تِلْكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ دا او چه څوک نه مني نو دوی ته که هر څومره احادیث واوروي. بے کاره دي. خدائ د مونږ له د عمل توفیق راکړي. (آمین)

# دریم فصل

## د شب قدر په بیان کښ

د رمضان په شپو کښ یوه د شب قدر برکتي شپه ده. چه قرآن شریف دے ته د زرو شپو برابر ویلے ده. چه د دے دری اتیا کاله او څلور میاشتے جوړیږي. ډیر خوش قسمته به وي چه د دے شپے عبادة یے نصیب شي. دا د خدائ ډیر لوئ انعام دے. چه په یوه شپه دومره لوئ فضل کوي. په درمنثور کښ د حضرت انس رض نه روایت دے. چه دا انعام د امت محمدي علیه السلام سره خاص دے. او د دے مختلف اسباب دي. لکه یو ګذار خوږ نبي علیه السلام چه د تیرو امتونو ډیر عمرونه اولیده. چه دوی پکښ عبادتونه کول. نو خوږ نبي صلی الله علیه وسلم په دے غمژن شه. چه څما لږ عمر لرونکے امت به د دوی سره په عبادت کښ څه برابر نیا او کړے شي. نو خدائ پاک د خپل نازولي محبوب غم دا لرے کړو. چه په رمضان کښ یے ورله د قدر شپه ورکړه. او چه دا شپه مثلاً په عمر کښ لس شپے د چا عبادة نصیب شي. نو بیا خو ورته د اته سوه دری دیرش کالو عبادت ثواب په لاس راشي. او بل سبب یے دا ذکر دے. چه خوږ نبي علیه السلام د اصحابو په مجلس کښ د بني اسرائیلو د یو کس ذکر او کړو

چه دا زر میاشتے جهاد کړے وو. نو اصحابو په دے باندے افسوس اوکړو.
چه زمونږ نه دا قسم جهاد کله کیدے شی. ځکه چه زمونږ عمر ونه لږ
دی. نو خدائ پاک دا د قدر شپه ور کړه. او بل سبب یې د حضرت
ایوبؑ، حضرت زکریاؑ، حضرت حزقیلؑ او حضرت یوشعؑ دا ذکرو بیلے
شی. چه څلور نبي علیه السلام اووے. چه دوی اتیا کاله عبادت کړے وو
او یوه سترګه رپ نافرمانی یې نه ده کړے. په دے اصحاب حیران شو.
نو حضرت جبرئیل علیه السلام سورة قدر راوړلو. دا اختلاف روایات
د مختلفو واقعاتو په وجه راځی. چاته چه کومه خبره اورسی. هغه د
سورت د نزول سبب او ګرځوی. دا د خدائ په توفیق ممکنه ده. چه د
دے شپے عبادت یې نصیب شی. سه

بد قسمته په کامل پیر نه رسیږی ⁂ خضر بَرے سکندر راوست حیات نه

د دے شپے په باره کښ مختلف روایات دی. خو د قرآن شریف دا سورت
د دے شپے د فضیلت د پاره کافی دے. چه د لیلة القدر صفت بیانوی. زه د
دے سورت اول تفسیر لیکم. دا ترجمه د حکیم الامة مولانا اشرف علی
صاحب تهانوی د بیان القرآن نه لیکم.

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ ط

إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ۔ بے شکه مونږ دا قرآن د لیلة القدر په شپه نازل کړو.
فائده: دا د لوح محفوظ نه اول اسمان ته نزول دے. نو د دے شپے د پاره د
لوئ فضیلت خبره به کومه کیدے شی. چه قرآن غوندے کلام په دے شپه
راکوز شه. بیا د ډیر شوق پیدا کولو د پاره خدائ پاک وائی. وَمَا أَدْرَاكَ مَا
لَيْلَةُ الْقَدْرِ۔ او تاته څه معلومه هم ده. چه دا د لیلة القدر شپه څومره لوئ څیز
دے؟ چه په دیکښ څومره ښه والی او څومره فضیلتونه دی! نو هغه بیا نیږی.
چه لَيْلَةُ الْقَدْرِ خَيْرٌ مِّنْ أَلْفِ شَهْرٍ ط په دے یوه شپه عبادت کښ د نو رو
زرو شپو د عبادت نه زیات ثواب دے. او د دے زیاتی علم هم تاته نشته
چه دا به څومره وی. تَنَزَّلُ الْمَلَائِكَةُ۔ په دے شپه کښ ملائکے راکوزیږی.

امام
امام رازی لیکی. چه ملائکو چه آدم د ختمونه جوړ اولیده. نو دا نه یئ کړکه اوکړه. او دا ده د فساد والي ذکر یئ د خدائ په مخکښ اوکړو. چه دے به وینے بیوی. بیا چه د مني په رنګ کښ دے مور پلار اولیده. نو دا هم د دے پلیتئ نه نفرت اوکړو. تر دے چه که دامني په جامه اولګیده. نو دا به یئ وینځل ولے چه هر کله خدائ دے قطرے ته ښه شکل ورکړو. نو مور پلار هم ددے سره محبت شروع کړو. او هر کله چه ته د خدائ معرفت په وجه د شب قدر په عبادت کښ اهم یئ نو ملائکے ستائیدو ته او د خپل اعتراض د عذر د پاره تا ته راځي. والروح فیها او جبریل ملائکه هم راځي. دا د لوئے مرتبے ملائکه ده. ځکه چه دا د عام نه پس خاص ذکر دے. بعض حضرات دا بله لویه ملائکه مني. چه د زمکو اسمانونو نه هم لویه ده. بعض دا د خاصو ملائکو یو ټولګے مني چه دا نور وخت نه ښکاري او دا خاص په دے شپه په نظر راځي. بعض وائي. چه دا د خدائ یو مخصوص مخلوق دے. چه خوراک څښاک کوي خو نه فرښته ده. او نه انسان دے. پنځم قول دا دے. چه دا عیسی ؑ دے چه د ملائکو سره د امت محمدي د دے قسم عبادت کونکو کتو ته راکوزیږي. شپږم دا یو خاص قسم رحمت دے چه د ملائکو سره راکوزیږي. اول روایت زیات معتبر دے. دا ملائکے چه په دے شپه خلق په ذکر او عبادت کښ اووینئ. نو دوی د دوی د پاره د رحمت دعا کوي. باذن ربهم من کل امر. د خدائ په حکم د خیر کارونه په لاس نښکته راکوزیږي. په مظاهر حق کښ لیکي. چه په دے شپه ملائکے پیدا شوي دي. او په دے شپه د آدم د ختمکي جوړښت شوے دے. او په دے شپه د جنت ونے لګیده شروع شویدي. په دے شپه دعا ګانے قبلیږي. په دے شپه حضرت عیسی ؑ آسمان ته ختلے دے. او په دے شپه د بني اسرائیلو توبه قبوله شویده. سلام هي حتی مطلع الفجر. ملائکے ټوله شپه په دے خلقو سلامونه وائي. او دا برکت د دے ده ته راځي. یا دا شپه د سلامتئ ده. په دے کښ هیڅ قسم فتنه او فساد نه وي. او دا حال به ټوله شپه تر سحره

وی. قرآن شریف په خپله دَدے شپے برکات او فضائل او ښودل.
ووس یو څو احادیث هم لیکم.

(۱) عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلعم مَنْ قَامَ لَیْلَةَ الْقَدْرِ اِیْمَانًا وَّاِحْتِسَابًا غُفِرَ لَهٗ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهٖ (بخاری و مسلم)

دَ ابوهریرهؓ نه روایت دے. دا وے چه خوږ نبی علیه السلام وے. چه څوک په دے شپه دَ قدر دَ عبادت دپاره په یوخ ایمان او دَ ثواب په خاطر اودریږی. نو د ده ته به روستی ګناهونه معاف کړے شی.

فائده:- دَ اولاړے نه مراد عبادت تلاوت او ذکر دے. دَ ثواب په نیت نه مراد چه دَ ریا دپاره نه وی. اخلاص دَ الله رضا او ثواب دَ ده په نیت کښ وی. بنه په خوشحالئ او دَ زړه په دړدونو ولاړ وی. په ناراستئ دَ ناخوالئ په رنګ کښ نه وی. څومره چه د بنده یقین سیوا وی. دومره ده ته دا عبادت آسان وی. څومره څومره چه دَ خدائی تقرب حاصلیږی. دومره دومره دے به عبادت کښ دَ فنا درجه حاصلوی. او دَ ګناهونو دَ معافئ نه مراد واړه ګناهونه دی. دَ لویو ګناهونو دَ معافئ دپاره قرآت اِلَّا مَنْ تَابَ فرمائی. چه توبه دَ لوے ګناه دَ معافئ ذریعه ده. او دا قید نه ذکر کول دَ دے توجیه دَ مولانا والد بزرګوار دا لیکی. چه دَ مسلمان دشان نه دا خلاف خبره ده. چه لوئی ګناه اوکړی. که دَ ده نه لوئی ګناه او شی نو دے به دومره بے آرامه شی. چه په توبه توبه سرشی. په تیر ګناه به ستومانه شی. او دَ مخکښ دپاره به وعده او کړی. چه بیا به دا لوئی ګناه نه کوم. او دَ دے قسم توبه ګار دپاره خدائی پاک دا موقعه ورکړی. چه دے دَ لیلة القدر په شپه عبادت ته تیار کړی. او دے که یو طرف ته دَ وړو ګناهونو دپاره دَ دے شپے په برکاتو معاف کیږی. نو په دے شپه دَ توبو په وجه په دَ لویو ګناهونو معافی هم غواړی.

(۲) عَنْ اَنَسٍ قَالَ دَخَلَ رَمَضَانُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلعم اِنَّ هٰذَا الشَّهْرَ قَدْ

دَ انسؓ نه روایت دے. دا وے چه یو ګل ار رمضان راغے نو خوږ نبی علیه السلام او وے

حضر کُم وَفِیْهِ لَیْلَةٌ خَیْرٌ مِّنْ اَلْفِ شَهْرٍ مَنْ حَرَمَهَا فَقَدْ حَرَمَ الْخَیْرَ کُلَّهٗ وَلَا یُحْرَمُ خَیْرَهَا اِلَّا مَحْرُوْمٌ (ابن ماجة) چه په تاسو یوه میاشت راغله. چه په دے کښ یوه شپه ده. چه هغه د زرو میاشتو غوره ده. څوک چه د دے نه محروم شو. نو د ټول خیر نه محروم شه. او د دے خیر نه محرومیږی مګر هغه کس چه په حقیقت کښ محرومه وی.

فائده:- د دیل ملازم د یوے معمولی تنخواه د پاره ټوله شپه شوګیره کوی. که یو بنده د اتیا کالو د عبادت د پاره یوه میاشت عبادت اوکړی. نو دا کومه داسے ګرانه خبره ده. په اصل کښ دا د زړه په دړد کیدے شی. چه کوم زړه کښ دا جوش او عشق وی. نو یوه میاشت خو ېرېږ. ده - دلته هره شپه او د دے هره ګړئ قیمتی خزانه په لاس راتله سیکاری. سه

محبت جفا وفا نه پیژنی ؛ د دے د زړه په درد هرځیز د خوند څهری.

تاسو لږ د خوږ نبی علیه السلام د څیو پرسوب ته اوګورئ. دوی سره د معافئ دا تکلیف ولے کوی. د دے خوبه څه سبب وی کنه! او اصحاب بیا په هم دے قسم عبادتو نو موږ ته د څپل عبادت نمونے پریږدی. دا څه خاص د پړدونه او خوند ونه وو. چه دوی یئ په شوګیرو اماده کړل. دے قسم خلقو ته د غره نه د پیو چینے ویستل ګران نه وو. خو دا شوق د فقراؤ او د دے د پړ دلړ د نکو په خدمت حاصلیږی. سه

که د زړه د پړدونه غواړے فقرانو ته زر د ستره

مونډے نشی دا هیڅ کله خزانو کښ د سرو زرو!

هم دغه د پړدو نو حضرت عمرؓ او حضرت عثمانؓ په شوګیرو اماده کړل. دوی به په یو رکعت کښ د ټول قرآن شریف ختم کوو. او د ما سخوتن په او دس به یئ د سحر مونځ کوو. د حضرت شداد به ټوله شپه څیغے وے. او دا به یئ وے. چه د دوزخ او ور دانه خوب ارخنتولو. صلهٔ بن اشیم به وے چه د جنت د غوښتو قابلیت خو نه لرم. دا قدر ے غواړم. چه د دوزخ نه مې بچ کړه. تا ده به ټول رمضان کښ په هره دریمه شپه او

په آخري عشره کښې هره شپه د قرآن ختم کوو. د امام ابوحنيفه څلويښت کاله
د ماسخوتن په اودس د سحر مونځ کول مشهوره خبره ده. چا وے دا دومره
طاقت څه رنګ لرې؟ نو دوی اووے. چه دا ما د الله د نومونو په طفيل
سوال کړے وو. د غزنے په د سنتو په خاطر دوی لږ خوب کوو. د قرآن
په لوستو به يے دومره ژړل. چه ګاونډيانو ته به پرے ترس راغے. يوه
شپه يے ټوله شپه د بَلِ السَّاعَةُ مَوْعِدُهُمْ په لوستو تيره کړه. ابراهيم
ادهم به په رمضان کښې نه د شپے او نه د ورځے خوب کوو. امام شافعي به
په رمضان کښې شپيته ختمونه کول. دغه قسم بے شماره د خدائ بندګان
دی. چه د دے قدر منے مياشتے يې قدر کړے دے. نن ورځ سره د زمانے
د فساد داسے بندګان شته چه په دے مياشت کښې د دنيا هيڅ مشغله دوی د
دے قدر منے مياشتے د قدر نه نه شي پاتے کولے. د خوږ نبي صلی الله عليه
وسلم فرمان دے. چه خدائ پاک وائي چه اے د آدم ځويه! ته ځما عبادت
ته ځان اوزګار کړه زه به ستا سينه د غنا نه ډکه کړم. او ستا فقيري
به لرے کړم. څوک چه نن هم د دين کار ونه کوی. لاړ شي او ګوري
د هغوی ژوند د دے حديث قدسي عملي نمونه ده. د تبليغي جماعت
افرادو لږ اوګورئ.

(٣) عَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ
صلعم اِذَا كَانَ لَيْلَةُ الْقَدْرِ نَزَلَ جِبْرَئِيْلُ
فِيْ كَبْكَبَةٍ مِّنَ الْمَلَائِكَةِ يُصَلُّوْنَ عَلٰى
كُلِّ عَبْدٍ قَائِمٍ اَوْ قَاعِدٍ يَذْكُرُ اللهَ
عَزَّ وَجَلَّ فَاِذَا كَانَ يَوْمُ عِيْدِهِمْ
يَعْنِيْ يَوْمَ فِطْرِهِمْ بَاهٰى بِهِمْ مَلَائِكَتَهٗ
فَقَالَ يَا مَلَائِكَتِيْ مَا جَزَاءُ اَجِيْرٍ وَفّٰى
عَمَلَهٗ، قَالُوْا رَبَّنَا جَزَاءُهٗ اَنْ يُّوَفّٰى
اَجْرَهٗ قَالَ مَلَائِكَتِيْ عَبِيْدِيْ وَ

د انس رض نه روايت دے. ده وے چه خوږ نبي
عليه السلام وے. چه هر کله د شب قدر شپه
شي. نو جبرئيل د ملائکو په يو ټولګي کښے راکوز
شي. او د هغه کس د پاره چه په ولاړے
يا ناستے د الله ذکر کوی. د رحمت دعا کوی
او د اختر په ورځ الله د دوی په عبادت فخر
کوی. او د دوی نه تپوس کوی. چه د داسے
مزدور چه پوره پوره مزدوری اوکړی
څه بدله ده؟ دوی وائي چه د دے قسم مزدور

إِمَائِیْ قَضَوْا فَرِیْضَتِیْ عَلَیْهِمْ ثُمَّ خَرَجُوْا یَعُجُّوْنَ اِلَی الدُّعَاءِ وَعِزَّتِیْ وَجَلَالِیْ وَکَرَمِیْ وَعُلُوِّیْ وَارْتِفَاعِ مَکَانِیْ لَاُجِیْبَنَّهُمْ فَیَقُوْلُ ارْجِعُوْا فَقَدْ غَفَرْتُ لَکُمْ وَبَدَّلْتُ لَکُمْ سَیِّاٰتِکُمْ حَسَنَاتٍ فَقَالَ فَیَرْجِعُوْنَ مَغْفُوْرًا لَهُمْ (بیهقی)

پوره بدله ده - خدائ وائي اے ملائکو! ځما بندګانو او وینځو ځما فرض پوره ادا کړه - بیا د اختر په ورځ په چغو چغو د دعا د پاره او وانه - ځما دې په خپل عزت، جلال، بخښے لوئ شان او لوړے مرتبے قسم وی - چه زه به د دوی دعا ځاما قبوله کړم - بیا دوی ته وائي ځئ ما او بخښلئ - او ستاسو بدئ م په نیکو بدلے کړے - نو دوی د عید ګاه نه بخښلی شوی او ګرځي -

فائده :- د جبرئیل ع د ملائکو سره راتله خو به قرآن کښ ذکر دی - او مخکښ به راشی - چه جبرائیل علیه السلام ټولو ملائکو ته وائي - چه د هر ذاکر کور و نو ته لاړے شی - او د دوی سره مصافحه اوکړی -

شیخ عبدالقادر رح وائي - چه دوی خو رے شی - او په هر کور کښ د ځنګل نو کښ هم د ذاکر مؤمن سره لاس ملاو کړی - خو هغه کور ته نه ځي - په کوم کښ چه سپے یا خنزیر وی - یا د زنا بے اودسه، یا تصویر وی - لیږ هغه کسان چه د خپلے محرومتیا ته فکر اوکړی - چه د کورو نو د ډول د پاره تصویرونه لګوی - او د جبرئیل ع د مصافحے نه ېرے محرومیږی - دا تصویرونه چا د کور نا پوهه او بے خبره ځلمی یا ښځلے د انګریزانو په قدم تلونکو لګولی وی - خو کور ټول د ملائکو د دعا ګانو نه محروم کړی - استغفرالله د دے ډول نه -

(۲) عَنْ عَائِشَةَ رض قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلعم تَحَرَّوْا لَیْلَةَ الْقَدْرِ فِی الْوِتْرِ مِنَ الْعَشْرِ الْاَوَاخِرِ مِنْ رَمَضَانَ (مشکوٰة)

د عائشے بی بی نه روایت دے - دے وے چه خوږ نبی علیه السلام وے - د لیلة القدر شپه په تاکو د آخرو لسو د رمضان کښ لټوئ -

فائده :- جمهور علماء وائي - چه آخری عشره د یو ویشتم شپے نه شروع کیږی - که میاشت د دیرش وی - او که د یو کم دیرش شو - نو د دے شپے د قدر به په ۲۱ - ۲۳ - ۲۵ - ۲۷ - ۲۹ شپو کښ تلاش کیږی - او ابن حزم وائي

چه میاشت ډیره کم دیر شو وی. نو بیا به آخری عشره د شلم نه شروع کیږی. نو بیا به دا شپه د قدر په ۲۰، ۲۲، ۲۴، ۲۶، ۲۷ کښ کوڅی. خو د دے خلاف د خوږ نبی علیه السلام په دے عشره کښ اعتکاف ثابت دے. او دوی به اتفاقاً دا اعتکاف د یویشتمے شپے نه شروع کوو. ځکه د غه مخکښ قول غوره دے. خو شک په دغه شپه کښ دے. نو ښکاره دی چه د شلے شپے نه شوکیره شروع شی. او د اختر تر شپے پورے ټولے شپے شوکیره اوکړی. د ثواب نو کوم کوټه دا لس شپے شوکیره ګرانه نه دِه.

عرفی په ژړا کښ د وصال لطف حاصلیږی ؛ تَش کاله به څه ژاړم که مطلب م پوره کیږی

(۵) عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ خَرَجَ النَّبِيُّ عَلَيْهِ السلام لِيُخْبِرَنَا بِلَيْلَةِ الْقَدْرِ فَتَلَاحَى رَجُلَانِ مِنَ الْمُسْلِمِينَ فَقَالَ خَرَجْتُ لِأُخْبِرَكُمْ بِلَيْلَةِ الْقَدْرِ فَتَلَاحَى فُلَانٌ وَفُلَانٌ فَرُفِعَتْ وَعَسَى أَنْ يَكُونَ خَيْرًا لَكُمْ فَالْتَمِسُوهَا فِي التَّاسِعَةِ وَالسَّابِعَةِ وَالْخَامِسَةِ (مشکوٰة)

د عباده د صامت د خوئی نه روایت دے ده وے. چه خوږ نبی علیه السلام دا اووت چه مونږ ته د لیلة القدر خبر را اکړی. خو په دوو مسلمانانو کښ جهګړه وه. بس خوږ نبی صلعم اووے. چه زه خو تاسو ته د لیلة القدر خبر درکونکے ووم. ولے فلانکی او فلانکی جهګړه کوله. نو د دے شپے خاصه شپه والے پورته شو. شاید چه دا پورته والے به ستاسو د پاره ښه وی. نو اوس تاسو دا شپه په نهمه، اوومه، او پنځمه کښ لټوئی.

فائده :- په دے حدیث کښ درے مضامین د غور قابل دی. اول د جهګړے ضرر د. چه د دے په وجه د لیلة القدر خاصه شپه پوره ته شوه. او د جهګړے په وجه د بریعے برکتی راحی. خوږ نبی صلی الله علیه وسلم د کورنئ بنه سلوک نه د مانځه روژے او خیرات نه بنه ویلے دے. او جهګړے ته یے د چړے هسے سر خروونکے ویلے ده. په جهګړه دین هم خریلے شی. نو یه ربه ! عام خلق خو پریږده تا سو د دیندارو تقریرونه او تحریرونه مجلسونه او جلسے لږ سے اوګوری. چه په دے کښ د جهګړو څومره ګرمه ګرمی ده. او په دیکښ که د دوئ څوک کوشش کوی. نو دا نه کامیابیږی. تاسو مخکښ لوستی دی. چه د چا عزت اغستنه

ډیر پلیت سود دے. ولے الله د رحم اوکړی. چه موږ نه د مسلمان عزت ته
ګورو. او نه د خوږ نبی علیه السلام ارشاد ته ګورو خدائی پاک خو وائی د
لَا تَنَازَعُوْا فَتَفْشَلُوْا جهګړه مه کوئ ستاسو هوا به لاړه شی. نن چه کوم
خلق د بل کس عزت اخلی. هغوی ډیر عزت نه اوکړی. چه د دا څه حالت
دے؟ او دے د خدائی پاک په مخکښ څومره ذلیل دے. خوږ نبی علیه السلام
خو د مسلمان د درے ورځو نه زیاته دشمنی د جهنم د تلو سبب ښکاره کوی
خوږ نبی صلی الله علیه وسلم وے چه هر ګل او زیارت د مؤمنانو عملونه
خدائی ته پیش کیږی. او د دوی د نیکو عملونو په وجه بخنه کیږی.
خو د دوو جهګړه مارو متعلق دا فرمان اوشی. چه د دوی بخنه تر روغ
پاتے ده. په دے ورځ توبے قبلیږی. خو چه جهګړه مارے روغ توبے
اوباسی. د دوی نورے توبے هم نه قبلیږی. دوی په خپل حال پرېښودے
شی. بل حدیث دے. چه د لیلة القدر په شپه په عام مخلوق رحم کیږی
او په لږه لږه خبره د مخلوق بخنه کیږی. خو د کافر او د کینه کر بخنه
نه کیږی.

په هغه درے تنو کښ چه د هغوی مونځ یوه لیشت د سر نه برابر ځی.
جهګړه مار هم دے. او دا اکثرے دښمنئ د دنیا د مشرئ او مبرئ د پاره
وی. که د چا د فسق په وجه یا د دین د کار د حمایت د پاره تعلق پرېښودے
شی. نو دا خو جائز خبره ده. لکه ابن عمر د خپل ځوئ سره تر مرګ خبرے
نه وے کړے. چه هغه په حدیث اعتراض کړے وو. خو خدای پاک دانا
او لیدونکے دے. د زړونو خبردار دے. چه د چا دا قطع تعلق د دین د پاره
دے. او کوم یو د ځان د لویئ د پاره دے. هیسے خو د هر یو دا دعوه ده.
چه زه خو د فلانکی سره د دین په خاطر کینه کوم.

دویمه خبره دا ده. چه د خدائی حکمت ته په رضا هره خبره سپارل
بکار دی. د شب قدر خاصه شپه پوره نه کیده خو په ظاهر کښ ډیر د نقصان
خبره ده. خو د خدائی د طرف نه ده. ځکه خوږ نبی علیه السلام وائی.

چه په دیکښې په زمونږ خیر وی. دا ډیره عبرت او غور ځائې دے. دَخدائې کریم ذات هروخت مهربانه دے. که بنده دَ خپلو بد عملو په وجه په یو مصیبت کښې ګیر شی. نو په دے وخت کښې چه بنده په خپلے عاجزئ اقرار اوکړی. نو دَ خدائې کرم دَ بنده شامل حال اوګرځی. او دغه مصیبت هم دَ بنده دَ خیر سبب جوړ کړے شی. او دا الله ته هیڅ ګران نه دی.

دَ لیلة القدر په پټ والی کښې علماء یو څو فائدے بنودلے دی. اول دا چه بعضے نا راستانو به هر و دَ نورو شپو عبادت پریښے وو. بس دے ته به ناست وو. او چه پټه شوه نو ډیرے شپے به په شک کښې عبادة کوی. بل ډیر ګنهګاران دی چه خامخواه ګناه کوی نو که دا شپه مخصوص وے. او دوی پکښې بیا هم ګناه کولے. نو دا ډیره دَ تباهئ خبره وه. یو ګل ارخوږ نبی علیه السلام په جمات کښې څوک اوده اولیده. نو دوی حضرت علیؓ ته او وے. چه دے ویخ کړه. چه اودس اوکړی. ده ویخ کړو خو ده دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوکړو. چه دَ تاسو ولے نه ویخوو؟ خوږ نبی علیه الصلوٰة والسلام او وے. چه که حما په ویخولو ده انکار کړے وے. نو دَ نبی علیه السلام دَ وینا نه انکار دَ کفر سبب وی. ستا په انکار کفر نه جوړیده. نو خدائې دا نه غوښتل. چه سړه دَ معلوموالی دَ دے شپے په اوقاتو کښې په ګناه زړه ورتیا اوشی.

دریم دا چه که دا مخصوص شپه دَ چا نه پاتے شوے وے. نو بیا به بیځ دَ ډیره غمه بله شپه هم و عبادت نه کوو. او اوس خو دَ رمضان یوه شپه دوه هر څوک شو ګیره کوی. څلورم دا چه اوس هر څو مره شپے ډیره دَ فخر خبره ده. دغه قسم ډیرے فائدے دی. او دَ خدائې پاک دا قانون دے. چه هر قدرمن څیز پټ ساتی. لکه اسم اعظم پټ دے. دَ جمعے دَ دعا دَ قبلید وخت پټ دے.

دریمه خبره په دے حدیث کښې دَ درے شپو ذکر دے. ۲۹، ۲۷، ۲۵

ولے که میاشت دَ یو کم دیرشو وی ـ نو بیا دا شپے ۲۱، ۲۳، ۲۵ جوړیږی
او چه میاشت دَ دیرشو شی نو بیا ۲۲، ۲۴، ۲۶ جوړیږی ـ دَ دے اختلاف
وجه داده چه دا په مختلفو کلو نو کښ مختلفے شپے دی ـ نو بعضے کلونو کښ
مختلفے شپے شوے ـ او په بعضو کښ خاصے شپے بیان شوے ـ لکه ابوهریرهؓ
ته خوږ نبی علیه السلام ۲۲ شپه دَ لیلة القدر فرما یلے ده ـ ابوذرؓ عرض
اوکړو ـ چه دا شپه په صرف ستاسو دَ ژوند په زمانه کښ وی؟ نو دوی
اوفرمائیل ـ چه دا به تر قیامته وی ـ بیا ده عرض اوکړو چه دَ رمضان
په کومه حصه کښ نو دوی اووے ـ چه په اولو او آخرو لسو کښ یے
تلاش کوئ ـ او بیا یے لږ ساعت پس اووے ـ چه په آخرو اووشپو
کښ یے گورئ ـ او بیا یے دے دَ نور تپوس نه منع کړو ـ چه خدائ پاک
دا پټه ساتل غواړی ـ نو دا دومره خاص ولے را نه ولے تپوس کوے ـ
یل صحابی ته خوږ نبی ۲۳ سنودلے وه ـ ابن عباسؓ ته چا په خوب
کښ اووے ـ چه پا سه لیلة القدر دے ـ دے په منره خوږ نبی علیه السلام
ته ورغے ـ دوی مونځ کوؤ ـ او دا درویشتمه شپه وه ـ په بعضے
روایاتو کښ ۲۴ هم راغلے ده ـ عبد الله بن مسعود وائی چه دَ دے
تلاش په ټول کال کښ پکار دے ـ دا خاص په رمضان کښ نه ده ـ ابن
کعب ته چا دَ ابن مسعود خبره اووئیله ـ نو ده اووے ـ چه دے
غواړی چه ټول کال عبادت اوکړے شی ـ او زه په قسم سره وایم
چه دا اوویشتمه شپه ده ـ امام ابو حنیفهؒ هم دَ ټول کال قائل دے ـ
او صاحبینؒ وائی چه دَ رمضان په هره شپه کښ دَ دے تلاش پکار دے
امام شافعیؒ دا په ا یویشتمه کښ منی ـ امام مالکؒ او امام احمدؒ دا دَ
آخری لسو په نا تکو کښ منی ـ جمهور علماء دَ دے په اوویشتمه
کښ زیات امید لری ـ محی الدین بن عربی هم دَ ټول کال قائل دے ـ
دے وائی ما دا شپه دوه کرته په شوقدر کښ لیدلے ده ـ یو
شپه په پنځلسمه او بله شپه په نولسمه ۱۹ ـ او دوه کرته په میاشتنی

لسو کښې دیارلسمه او اتلسمه[۸] کښې او دَ آخری عشره په تاتکو کښې دے حٔکه وائی چه دادَ ټول کال په شپو کښې کرځی. خو په رمضان کښې دا ډیره مني. او شاه ولی الله رح وائی. چه دا شپه په کال کښې دوه کرته اره وی. یوه هغه شپه ده. چه په دیکښې دَ خدائی پاک احکام نازلیږی. او په دے شپه قرآن دَ لوح محفوظ نه اسمان اول ته راکوز شوے وو. دا شپه دَ روژے سره خاصه نه ده. دا په ټول کال کښې کرځی. خو دَ قرآن نزول په رمضان کښې شوے وو. او دویمه هغه شپه ده. چه په دیکښې روحانیت خوریږی. او ډیرے ملائکے زمکے ته راکوزیږی. او شیاطین تختی. دعاگانے او عبادتونه قبلیږی. نو دا په هر رمضان کښې وی. او دَ رمضان په آخری تاتکو کښې بدلیږی رابدلیږی. مولانا زکریا رح وائی چه ما دَ پلار رح مرحوم دا قول خوښ وو.

خلاصه دا ده که دا شپه دوه وی. او که یوه وی دَ خپل طاقت په برابر همت پکار دے. چه دَ دے په ټول کال کښې تلاش او شی. کنی په رمضان کښې خو خامخا دَ دے تلاش پکار دے. او که دا هم نه وی نو په آخری لسو کښې یے تلاش پکار دے. کنی په تاتکو کښې یے کاته پکار دی. کنی بیا یے په او ویشتمه کښې ضرور اوکوری. که چا خوش نصیبه ته دا شپه په لاس راغله نو مولانا وائی او زه هم وایم. چه موږ ته هم پکښې دعا اوکړی. او دا شپه دِ دا کس دَ ټولو نعمتونو او راحتونو نه لویه او قدرمنه اوګڼړی. او که چا بیا نه مونده نو ثوابونه یے په تلاش کښې ده ته حاصل شو. دَ ما ښام او ماسخوتن مونځ خو خامخا په جمع په جماعت کښې پکار دے. که په خوش قسمتئ سره دا دواړه مونځونه په شب قدر کښې اوشو. نو دا هم ډیر دَ ثواب مونځونه شو. ته ګوره خدائی پاک په تش کوشش هم ثواب ورکوی. دَ دنیا په کار کښې که بنده کوشش اوکړو. او خیر حاصل نه شه نو کوشش هسے لاړ او موږ په دیکښې جان او مال قربانوو او دَ دین په کار کښې که څه خیر ملاو نه شو نو کوشش یے بے فائدے نه دے. نو اوس تاسو اوګورئ چه موږ ته دَ دین په کار کښې کوشش

بیکار دے. که د دنیا په کار کښې ـ

که دین پریږدې د دنیا واخلې

دا به لویه بدبختي وي

(۷) عَنْ عُبَادَةَ ابْنِ الصَّامِتِ اَنَّهٗ سَأَلَ رَسُوْلَ اللهِ صلعم عَنْ لَيْلَةِ الْقَدْرِ فَقَالَ فِيْ رَمَضَانَ فِي الْعَشْرَةِ الْاَوَاخِرِ فَاِنَّهَا فِيْ لَيْلَةِ وِتْرٍ فِيْ اِحْدٰى وَعِشْرِيْنَ اَوْ ثَلٰثٍ وَّعِشْرِيْنَ اَوْ خَمْسٍ وَّعِشْرِيْنَ اَوْ سَبْعٍ وَّعِشْرِيْنَ اَوْ تِسْعٍ وَّعِشْرِيْنَ اَوْ اٰخِرِ لَيْلَةٍ مِّنْ رَمَضَانَ مَنْ قَامَهَا اِيْمَانًا وَّاحْتِسَابًا غُفِرَ لَهٗ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهٖ وَمِنْ اَمَارَاتِهَا اَنَّهَا لَيْلَةٌ بَلْجَةٌ صَافِيَةٌ سَاكِنَةٌ سَاجِيَةٌ لَا حَارَّةٌ وَّلَا بَارِدَةٌ كَاَنَّ فِيْهَا قَمَرًا سَاطِعًا وَّلَا يَحِلُّ لِنَجْمٍ اَنْ يُّرْمٰى بِهٖ تِلْكَ اللَّيْلَةَ حَتَّى الصَّبَاحِ. وَمِنْ اَمَارَاتِهَا اَنَّ الشَّمْسَ تَطْلُعُ صَبِيْحَتَهَا لَا شُعَاعَ لَهَا مُسْتَوِيَةً كَاَنَّهَا الْقَمَرُ لَيْلَةَ الْبَدْرِ وَحَرَّمَ اللهُ عَلَى الشَّيْطَانِ اَنْ يَّخْرُجَ مَعَهَا يَوْمَئِذٍ. (درمنثور)

د عبادة نه چه د صامت ځوئ دے وائي چه د خور نبي عليه السلام نه د ليلة القدر په باره کښې تپوس اوکړو. نو پاک پیغمبر ورته آخري لس اود دے نا تکئ او خود چه هغه یوویشتمه، دروېشتمه، پنځوېشتمه اووېشتمه یوکم دیرشمه او د رمضان آخري شپه ده. په دیکښې چه څوک په ایمان او د ثواب په نیت عبادت اوکړي نو دلته په روستي ګناهونه معاف شي او د دے شپے نخه داده چه دا به پراښتے روښانه وي. صفا به وي. نه به ګرمه وي نه ډیره یخه، میانه حال به وي سپوږمۍ په کې پرابښتے وي. او په دے شپه به شیاطین په ستورو نه شي ویشتے.

او د دے شپے نخه داده. چه د دے شپے نه پس نور به بے شغلو راخيژي. برابر ککورے به وي. لکه د څوارلسمے شپے سپوږمۍ. او د دے نمر سره به د شیطان د تلو نه منع وي.

فائده:- په دے حدیث کښې د دے شپے نخے بیان شوي دي. چه د روځے نمر راخیژي نو په هغے کښې به شغلے نه وي. عبده بن ابي لبابه وائي. چه ما په دے شپه د سمندر اوبه څکلے. نو هغه بالکل خوږے وے. دا اووېشتمه د رمضان وه. د غسے ایوب بن خالد وائي. چه په

در ویشتمه ما لامبل. نو دَ سمندر او به بالکل خوږے وے. صوفیان وائی چه په دے شپه هر څیز سجده کوی. تر دے چه ونے به هم په زمکه پرتے وی. او بیا او دریږی. خو دا کشفی خبرے دی. په دے عام نه پوهیږی.

(۷) عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ أَرَأَيْتَ إِنْ عَلِمْتُ لَيْلَةَ الْقَدْرِ مَا أَقُوْلُ فِيْهَا قَالَ قُوْلِي اللّٰهُمَّ إِنَّكَ عَفُوٌّ تُحِبُّ الْعَفْوَ فَاعْفُ عَنِّيْ. (احمد)

دَ عائشے بی بی رضی نه روایت دے. دَ وے چه ما وے اے خوږه نبی ص! ما خبر کړه چه که چرے زه دَ لیلة القدر شپه بیا موم نو کومه دعا به کومه. نو دوی او فرمائیل چه اے معافی کوتکی خدایه! ستا معافی خوښه ده. نو ما نه معافی او کړے.

فائده:- ډیره دَ مطلب دعا ده. که مونږ دَ آخرت دَ مطالبو نه معاف شو. نو دا به ډیره لویه دَ خدائی مهربانی وی.

زه دا نه وایم طاعت څما قبول کړه!
زه خو دا ایم گناهونه م معاف کړے

سفیان ثوری وائی. چه په دے شپه کښ دَ عبادت نه زیاتے دعا گانے پکار دی. ابن رجب وائی. دواړه دِ کوی. لکه تلاوت، مونځ، دعا، مراقبه، دا ټول دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم نه نقل دی.

# دریم فصل!

## دَ اعتکاف په بیان کښ

اعتکاف په جمات کښ تا بیا ریدو نیت نه وائی. دَ احنافو په نزد دَ اعتکاف درے قسمه دی. یو واجب دے. چه یو بنده دَ څه ناجوړتیا وغیره نه په جوړیدو او منی. یا هسے په ځان اعتکاف لازم کړی. او که څه خاصے ورځے یے مقرړے کړی. نو دا ورځے به ضرور اعتکاف کوی.

دویم سنت دے. چه هغه دَ آخری لسو ورځو اعتکاف دے. چه خوږ نبی علیه السلام په ځپله کړے دے.

دریم نفل دے. چه دَ دے دَپاره نه څه خاص وخت شته. او نه څه مقدار څومره چه غواړی. تر دے چه که ټول دَ اعتکاف نیت کوی نو هم کولے شی. خو په کمی کښ ئے اختلاف دے. امام صاحبؒ وائی. چه دَ یوے ورځے نه کم اعتکاف نه دے جائز. او امام محمدؒ وائی. چه دَ لږ ساعت هم جائز دے. او په دے فتویٰ ده. په دے وجه پکار دی. چه هر کله بنده جمات ته داخلیږی. نو دَ اعتکاف نیت دِ کوی. څومره ساعت چه په جمات کښ عبادت کوی. ثواب به دَ اعتکاف هم ور کیدے شی. مولانا صاحب وائی. چه ځما دَ والد مرحوم هم دا عادت وو. دوی به ښئی خپه ځکښ کړه. او دَ اعتکاف نیت به ئے اوکړو. او کله کله به ئے په زوره نیت اووے. چه خادمان ئے واوری. دَ اعتکاف دَ فضیلت دَ دے نه لوئی دلیل څه کیدے شی. چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم ځپله همیشه کړے دے. دَ ده مثال خو داسے دے. لکه یو سوالګرے چه په دروازه کښ پریوځی. او وائی چه زه دَ ره نه دَ تلو نه یم. تر څو چه ځما سوال قبول نکړے.

ـــه ځما دِ روح ستا په قدم باندے قربان شی
خدائیګو دغه دَ زړګی خواهش لرم

چه په دے حِز به بنده دَ خدائے پاک په کور کښ کلک چه شی. نو بیا خو ده ګناه اوکړه. ځکه چه خدائے پاک خو زمونږ دَ بخښنے دَپاره بهانه لټوی. بلکه کله ئے بے بهانے هم اکوی. نو په داسے حالت کښ به خو هغه رحمتونه په جوش کښ راشی. ـــه

ته هغه الله ئے چه ستا در هر وخت واد ے
ستا نه رحم غواړم زړه رم کړ په دے سودا دے
لږ خو دَ موسیٰ نه دَ عطا ئے تپوس اوکړه
لاړلو چه اورله نبوت ئے ور عطا کړو

بنده چه ورته داسې پوره په پرلتو کېني. نو بیا خو دَ هغه دَ ورکړو تپوس
مه کوه. دَ هغه په خزانو کښې څه نشته. او دَ هغه سره دَ حساب څوک
دی. زیات څه نه وایم چه نابالغ په دَ بلوغ څه بیان اُکړی. ؎

په کُل کوم چه زه فدا یم زه دَ هغه دَ در ګدا یم
یا وصال م دِ نصیب شی یا په مرګ بانډې رضا یم

ابن قیمؒ وائی. چه دَ اعتکاف روح دا دے. چه زړه دَ خدائ دَ پاک
ذات سره اونښلی. او دَ نور مخلوق نه دِ بالکل قطع شی. دَ نورو شغلونو
په ځائ دِ دَ ده شغل شروع کړی. پس دے دِ دَ خدائ ذکر، دَ ده
سره محبت او دَ نورو سره دَ تعلق په ځائ دَ الله سره تعلق پیدا
کړی. دغه دَ خدائ پاک دَ قبر مرګرے دے. چه هلته به بے دَ خدائ
نه بل هیڅوک نه وی. دَ خدائ په تعلق به دَ قبر هغه وخت ډیر ښه تیرېږی.

؎ زه هغه فرصت دَ شپے دَ ورځے غواړم
یکښې خدائ ته چه زاری کوم ژاړم

صاحب دَ مراقی الفلاح لیکی. چه دَ اخلاص اعتکاف ډیر غوره اعمالو
نه دے. ځکه په دے کښې زړه دَ دنیا او دَ دنیا دَ څیزونو نه بیوا ړخ ته شی.
او دے ځان خدائ پاک ته اوسپاری. او دَ الله په درشل پریوځی.

؎ زړه م غواړی چه مدام دِ پروت په دروے
دربانچی ته په منت باندے زه سروے

په اعتکاف کښې هر وخت بنده په عبادت کښې وی. تر دے چه دَ ده خوب
هم عبادت وی. او هر وخت دَ الله سره نزدے ولے وی. خو په نبی علیه السلام
وائی چه خدائ پاک فرمائی. چه بنده ما ته یو لاس نزدے شی. نو زه
ورته دوه لاسه نزدے کیږم. او چه ما طرف ته رورو راځی. نو زه ورته
په منډه ورځم. معتکف دَ خدائ په کور کښې میلمه وی. او کور به خو دَ
خپل میلمه ضرور قدر کوی. او دا معتکف په دَ خدائ په قلا کښې وی.
نو دے دَ دښمن نه په امن کښې وی. ده ته دښمن نه رسی. دغه

قسم دیر فضائل او خواص دَ اعتکاف شته دے۔

مسئله :- دَ سړی خو دَ اعتکاف دیر غوره مقام دَ مکے معظمے جمات دے۔
بیا دَ مدینے منورے جمات۔ بیا دَ بیت المقدس جمات۔
بیا دَ ښار جامع مسجد۔ بیا دَ خپلے محلے جمات۔ امام صاحبؒ وائی دا دِ داسے جمات
وی۔ چه دغلته پنځه وخته دَ جمع مونځ کیږی۔ صاحبین وائی۔ چه جماتوالے
قدرے کافی دے۔ که جمع پکښ نه کیږی نو بیا هم په دَ کښ اعتکاف کیږی۔
ښځه به دَ خپل کور په جمات کښ اعتکاف کوی۔ او که خاص جمات
پکښ نه وی نو یو کوټ دِ وړله خاص کړی۔ دَ ښځو اعتکاف اسان دے۔
په کور کښ ناسته وی۔ دَ خپلو جینکو نه کار هم اخستے شی۔ او ثوابونه
ئې خو زموږ اکثرے ښیانے دَ دے ثوابونو نه محرومه کړی۔

(۱) عَنْ اَبِیْ سَعِیْدِ نِ الْخُدْرِیِّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صلی الله علیه وسلم اِعْتَکَفَ الْعَشْرَ الْاَوَّلَ مِنْ رَمَضَانَ ثُمَّ اِعْتَکَفَ الْعَشْرَ الْاَوْسَطَ فِیْ قُبَّةٍ تُرْکِیَّةٍ ثُمَّ اَخْرَجَ رَاْسَهٗ فَقَالَ اِنِّیْ اِعْتَکَفْتُ الْعَشْرَ الْاَوَّلَ اَلْتَمِسُ هٰذِهِ اللَّیْلَةَ ثُمَّ اعْتَکَفْتُ الْعَشْرَ الْاَوْسَطَ ثُمَّ اُتِیْتُ فَقِیْلَ لِیْ اِنَّهَا فِی الْعَشْرِ الْاَوَاخِرِ فَقَدْ رَاَیْتُ هٰذِهِ اللَّیْلَةَ ثُمَّ اُنْسِیْتُهَا وَقَدْ رَاَیْتُنِیْ اَسْجُدُ فِیْ مَاءٍ وَطِیْنٍ مِنْ صَبِیْحَتِهَا فَالْتَمِسُوْهَا فِی الْعَشْرِ الْاَوَاخِرِ وَالْتَمِسُوْا فِیْ کُلِّ وِتْرٍ۔ قَالَ فَمُطِرَتِ السَّمَاءُ تِلْکَ اللَّیْلَةَ وَکَانَ الْمَسْجِدُ عَلٰی عَرِیْشٍ فَوَکَفَ الْمَسْجِدُ فَبَصُرَتْ عَیْنَایَ

دَ ابوسعید خدری نه روایت دے۔ چه حضور نبی علیه السلام په اولنو لسو ورځو کښ اعتکاف اوکړو دَ رمضان بیائے په مینځینو لسو کښ په یوے ترکی خیمه کښ بیا یئے سر باهر کړو۔ پس دا اووے۔ چه ما دَ اولنو لسو ورځو اعتکاف دَ لیلة القدر په تلاش کښ اوکړه۔ بیائے دَ مینځینو لسو اعتکاف اوکړو۔ بیا ما ته چا (فرښتے) اووے چه دا شپه خو په آخرو لسو کښ ده پس چا چه ما سره اعتکاف کړے دے۔ پکار دی چه په آخرو لسو کښ اعتکاف اوکړی۔ پس ما ته او ښودے شوه۔ بیا دا شپه ما نه هیره کړے شوه۔ دَ دے نخه دا ده چه ما خپل سجده په اوبو او خټو کښ په سحر دَ دے شپے کښ اولیده۔ پس دا تاسو په آخری

رَسُوْلَ اللّٰہِ صلعم وَ عَلٰی جَبْهَتِہٖ اَثَرُ الْمَآءِ وَالطِّیْنِ مِنْ صَبِیْحَۃِ اِحْدٰی وَعِشْرِیْنَ۔ مشکوٰۃ۔

لسو کښې اولیدوئی۔ او دا په نا تکو کښې اولیدوئی۔ راوی وائی چه په دے شپه کښې باران اوشه۔ او جماعت خو سپر وو هغه او سسیدہ۔ نو حُماستر کو دَ خوږ نبی علیه السلام په تندی دا وبو او خټو اثر اولیدلو۔ او دا په سحر د یویشتمې بانه

فائدہ:- اعتکاف خو دَ خوږ نبی علیه السلام معمول وو۔ خو په دے میاشت کښې پټوله میاشت اعتکاف اوکړو۔ او دَ وفات په کال یې شل ورځے اعتکاف کړے وو او علم عادة یې دَ آخری عشرے اعتکاف وو۔ ځکه دا اعتکاف سنت موکد دے۔ او دَ دے اعتکاف غرض دَ لیلة القدر تلاش وو۔ او دَ دے دَ پاره اعتکاف ځکه ډیر مناسب دے۔ چه دَ دے خوب هم عبادت دے۔ په اعتکاف کښې چرته تله راتله او نور کارو نه وی۔ ځکه دَ ده پټوله مشغله صرف دَ الله په یاد کښې وی۔ ځکه خوک چه دَ لیلة القدر قدر من دی۔ هغوی دَ پاره اعتکاف کول ښه ذریعه ده۔ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم به په پټول رمضان کښې ډیر عبادت کوو۔ خو په آخری عشره کښې به یې هسے ځان وژلو۔ دَ شپے به په خپله هم ویښ وُو۔ او دَ کور خلق به یې هم ویښ ساتل۔ عایشه بی بیؓ وائی چه په آخری لسو کښې به ئے کلک لنګ اُوا هه۔ دَ دے مطلب ډیر کوشش یا دَ بېبیانو نه پرهیز دواړه کیدے شی۔

(۲) عَنْ اِبْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰہِ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ قَالَ فِی الْمُعْتَکِفِ هُوَ یَعْتَکِفُ الذُّنُوْبَ وَیُجْرٰی لَہٗ مِنَ الْحَسَنَاتِ کَعَامِلِ الْحَسَنَاتِ کُلِّهَا۔ (مشکوٰۃ)

دَ ابن عباسؓ نه روایت دے۔ چه خوږ نبی صلی الله علیه وسلم دَ اعتکاف کو نکی په باره کښې اووے۔ چه دے دَ ګناهونو نه بچ شی۔ او دَ ده دَ نیکو کونکو هسے پټولے نیکئ او لیکلے شی۔

فائده:- دا صحیح ده۔ چه هر کله بنده ځان ته ناست وی۔ نو دے خو دَ ګناهونو نه بچ وی۔ باهر خو دَ چا سره په ناسته او لاړه کښې ضرور څه دَ ګناه اسباب جوړ شی۔ او که دے دَ جنازے یا دَ مریض دَ تپوس نه بند پاتے شه نو سره دَ نه کولو دا دَ ده په نیکو کښې لیکلے شی۔ څه کریم خدائی دے دَ یو عبادت

په وجه دَ دهٔ دَ یارهٔ ډیر عبادت بے کولو لیکلے شی. دا په اصل کښې خدائے دَ بندهٔ دَ بخښے دَ یارهٔ بهانه گوری. او چه لږ ترے غواړے نو ډیر ډیر ورکوی خو مونږ سره دَ دے قدر نشته. او مونږ دَ دے ضرورت نه کنړو نو توجه به ورته څه اوکړو. زمونږ دَ زړو لو نه دَ دین عزت وتے دے. الله دِ پابانذے رحم اوکړی. چه دَ دین قدر اوکړو.

(۳) عَنْ اِبْنِ عَبَّاسٍ اَنَّهٗ کَانَ مُعْتَکِفًا فِیْ مَسْجِدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ فَاَتَاهُ رَجُلٌ فَسَلَّمَ عَلَیْهِ ثُمَّ جَلَسَ فَقَالَ لَهٗ ابْنُ عَبَّاسٍ یَا فُلَانُ اَرَاکَ مُکْتَئِبًا حَزِیْنًا قَالَ نَعَمْ یَا ابْنَ عَمِّ رَسُوْلِ اللّٰهِ لِفُلَانٍ عَلَیَّ حَقٌّ وَلَا وَحُرْمَةِ صَاحِبِ هٰذَا الْقَبْرِ مَا اَقْدِرُ عَلَیْهِ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اَفَلَا اُکَلِّمُهٗ فِیْکَ قَالَ اِنْ اَحْبَبْتَ فَانْتَعَلَ ابْنُ عَبَّاسٍ ثُمَّ خَرَجَ مِنَ الْمَسْجِدِ قَالَ لَهُ الرَّجُلُ اَنَسِیْتَ مَا اَنْتَ فِیْهِ قَالَ لَا وَلٰکِنِّیْ سَمِعْتُ صَاحِبَ هٰذَا الْقَبْرِ صلعم. وَالْعَهْدُ بِهٖ قَرِیْبٌ فَدَمَعَتْ عَیْنَاهُ وَهُوَ یَقُوْلُ مَنْ مَشٰی فِیْ حَاجَةِ اَخِیْهِ وَبَلَغَ فِیْهَا کَانَ خَیْرًا لَّهٗ مِنِ اعْتِکَافِ عَشْرِ سِنِیْنَ وَمَنِ اعْتَکَفَ یَوْمًا ابْتِغَاءَ وَجْهِ اللّٰهِ جَعَلَ اللّٰهُ بَیْنَهٗ وَبَیْنَ النَّارِ ثَلٰثَ خَنَادِقَ اَبْعَدُ مِمَّا بَیْنَ الْخَافِقَیْنِ (طبرانی)

دَ ابن عباسؓ نه روایت دے. چه دَ خوږ نبی صلی الله علیه وسلم په جمات کښې چیله وو. دهٔ ته یو سړے راغے. سلام یے اوکړو او کینا ستو. دهٔ ورته اووے چه فلانکیه! ته خو غمژن معلومیږے. دهٔ اووے دَ خوږ نبیؐ دَ تره ځویه! دَ فلانکی په ما حق دے. او قسم دے دَ دے قبر دَ خاوند په عزت قسم وی. چه زهٔ دا نشم ورکولے. دهٔ ورته اووے چه زهٔ دَ دهٔ سره ستا دَ یارهٔ خبرے اوکړم؟ دهٔ وے چه که ستا خوښه وی نو ښه دهٔ. نو پیزار یے په خپو کړو او دَ جمات نه اووت نو دے سړی دهٔ ته اووے. چه ستا نه اعتکاف هیر شه؟ دهٔ ورته اووے چه نه! ما دَ دے قبر دَ خاوند نه په نژدے زمانه کښې اوریدلی دی. او سترګے یے دَ اوښکو ډکے شوے. چه دهٔ وے چه څوک دَ یو رور په حاجت کښې لاړ شی. او کوشش اوکړی. نو دا ورله دَ لسو کالو دَ اعتکاف نه ډیر ثواب دے. او چا چه یوه ورځ دَ خدائے دَ یارهٔ اعتکاف اوکړو نو ددهٔ او دَ اور په مینځ کښې دَ زمکې اسمان نه زیات خندقونه جوړیږی.

فائده:- چه د یوې ورځې د اعتکاف دومره ثواب دے. نو چه د لسو کالو د اعتکاف به څومره ثواب وی. او د روژې د پاره که تله د دے نه هم زیات ثواب لری. علامه شعرانی د خوږ نبی علیه السلام نه په کشف الغمه کښې فرمان نقل کوی. چه د رمضان د لسو ورځو اعتکاف د دوو حجونو او د دوو عمرو هومره ثواب لری. او چه د مابنام نه تر ماسخوتنه اعتکاف اوکړی. چه مونځ کوی یا قرآن لولی. نو د ده د پاره جنت جوړ شی. خوږ نبی علیه السلام په حاکم ته وے. وَاتَّقِ دَعْوَةَ الْمَظْلُوْم. د مظلوم د خیروته اویریږه.

د مظلوم د چغو او یریږه څوا سنه!

د قبول چغې یې خیژی له دهانه!

مسئله دا ده چه بے د حاجت ضروری نه د جمات و تل اعتکاف ماتوی. که اعتکاف یې مات کړو او لازم که. دا هغه جز به وکا. چه یچپله به د تندے مرکیده. څو او به به یې بل ته ورکوے. او که دا نفلی اعتکاف وی. نو خیر دے.

په آخر کښې یو لوئی مفصل حدیث چه پکښې فضائل دی لیکم. او رساله په ده ختموم.

(۴) عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّهٗ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ الْجَنَّةَ لَتُبَخَّرُ وَتُزَيَّنُ مِنَ الْحَوْلِ اِلَى الْحَوْلِ لِدُخُوْلِ شَهْرِ رَمَضَانَ فَاِذَا كَانَتْ اَوَّلُ لَيْلَةٍ مِنْ شَهْرِ رَمَضَانَ هَبَّتْ رِيْحٌ مِنْ تَحْتِ الْعَرْشِ يُقَالُ لَهَا الْمُثِيْرَةُ فَتَصْفِقُ وَرَقَاتُ اَشْجَارِ الْجِنَانِ وَحِلَقُ الْمَصَارِيْعِ فَيُسْمَعُ لِذٰلِكَ طَنِيْنٌ لَمْ يَسْمَعِ السَّامِعُوْنَ اَحْسَنَ مِنْهُ فَتَبْرُزُ الْحُوْرُ الْعِيْنُ حَتّٰى

د ابن عباس رض نه روایت دے. ده د خوږ نبی صلی الله علیه وسلم نه اوریدلی دی. دوی وے. چه په جنت کښې خوشبوئی او ښائسته کول د یو کال نه تر بل کاله کیږی. د رمضان د میاشتې د راتلو د پاره. پس هر کله چه د رمضان اوله شپه شی. نو د عرش د لاندې هوا راوالوځی چه دے ته مثیره وائی. په دے د جنت د ونو پاڼې په سندرو اولړی. او د غنیې د شپو زنځیرونه. او د دے نه داسې سُر ناک آواز راځی. چه دا سې خوږ

حَتّٰى يَقِفْنَ بَيْنَ شَرَفِ الْجَنَّةِ فَيُنَادِيْنَ
هَلْ مِنْ خَاطِبٍ اِلَى اللّٰهِ فَيُزَوِّجُهٗ ثُمَّ
يَقُلْنَ الْحُوْرُ الْعِيْنُ يَا رِضْوَانَ الْجَنَّةِ
مَا هٰذِهِ اللَّيْلَةُ فَيُجِيْبُهُنَّ بِالتَّلْبِيَةِ ثُمَّ
يَقُوْلُ هٰذِهٖ اَوَّلُ لَيْلَةٍ مِّنْ شَهْرِ
رَمَضَانَ فُتِحَتْ اَبْوَابُ الْجَنَّةِ عَلَى الصَّائِمِيْنَ
مِنْ اُمَّةِ مُحَمَّدٍ صلى الله عليه وسلم قَالَ
وَيَقُوْلُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ يَا رِضْوَانُ اَفْتَحْ
اَبْوَابَ الْجِنَانِ وَيَا مَالِكُ اَغْلِقْ اَبْوَابَ
الْجَحِيْمِ عَلَى الصَّائِمِيْنَ مِنْ اُمَّةِ اَحْمَدَ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيَا جِبْرِيْلُ اِهْبِطْ
اِلَى الْاَرْضِ فَاصْفِدْ مَرَدَةَ الشَّيَاطِيْنِ
وَغُلَّهُمْ بِالْاَغْلَالِ ثُمَّ اقْذِفْهُمْ فِي الْبِحَارِ
حَتّٰى لَا يُفْسِدُوْا عَلٰى اُمَّةِ مُحَمَّدٍ حَبِيْبِيْ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صِيَامَهُمْ قَالَ
وَيَقُوْلُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ فِيْ كُلِّ لَيْلَةٍ
مِّنْ شَهْرِ رَمَضَانَ لِمُنَادٍ يُنَادِيْ ثَلٰثَ
مَرَّاتٍ هَلْ مِنْ سَائِلٍ فَاُعْطِيَهٗ سُؤْلَهٗ
هَلْ مِنْ تَائِبٍ فَاَتُوْبَ عَلَيْهِ - هَلْ
مِنْ مُّسْتَغْفِرٍ فَاَغْفِرَ لَهٗ مَنْ يُّقْرِضُ
الْمَلِيَّ غَيْرَ الْعَدُوْمِ وَالْوَفِيَّ غَيْرَ
الظَّلُوْمِ قَالَ وَلِلّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ فِيْ كُلِّ
يَوْمٍ مِّنْ شَهْرِ رَمَضَانَ عِنْدَ الْاِفْطَارِ
اَلْفُ اَلْفِ عَتِيْقٍ مِّنَ النَّارِ كُلُّهُمْ
قَدِ اسْتَوْجَبُوا النَّارَ فَاِذَا كَانَ اٰخِرُ

آواز به چا نه وی اوریدلے. پس بیا نشته سترگے
لروکے حورے به د خپلو کورونو د جنت بالاخانو
ته راښکاره شی. او اواز به اوکړی. چه څوک
زمونږ سره کوژدن کونکے شته. چه خدائ ته
ورسره جوړه کړی؟ بیا به دوی د رضوان جنت
د دروغه نه تپوس اوکړی. چه داکومه شپه ده؟
دا به ورته لبیک اووائی او جواب به ورکړی. چه
دا د رمضان اوله شپه ده. چه د جنت
دروازے د امت محمدی په روژه دارو پرانستے
شوے. او الله عز شانه او د جلال خاوند به اووائی
اے رضوانه! د جنت دروازے پرانځه. او اے
مالکه د دوزخ دروازے بندے کړه. د خوږه نبی
په روژه دارو باندے او اے جبرئیله! مزکے ته
کوز شه. او سرکښه شیطانان قید کړه. او د دوی
ستونو ته طوقونه واچوه. بیا دوی دریابونو
ته او غورزوه. چه دوی د محمد د امت روژے
خرابے نه کړی. راوی وائی چه خدائ پاک اووائی
چه خدائ پاک د رمضان د هرے روژے په شپه
یو اعلانچی ته حکم کوی چه درے ځل داره اعلان
اوکړه. چه څوک سوالگرے شته دے. چه ورله
سوال ورکړے شی. او توبه گار شته. د چه توبه
یے قبوله شی. څوک بخښنه غواړی؟ چه او بخښلے
شی. څوک شته چه غنی ته چه نادار نه وی قرض
ورکونکے وی. او بے گناه کونکے شته او خوږه نبی
چه خدائ په هره ورځ د رمضان کښی د روژه ماتی

يَوْمٍ مِّنْ شَهْرِ رَمَضَانَ اَعْتَقَ اللّٰهُ
فِيْ ذٰلِكَ الْيَوْمِ بِقَدْرِ مَا اَعْتَقَ مِنْ
اَوَّلِ الشَّهْرِ اِلٰى آخِرِهٖ وَاِذَا كَانَتْ لَيْلَةُ
الْقَدْرِ يَاْمُرُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ جِبْرِيْلَ
فَيَهْبِطُ فِيْ كَبْكَبَةٍ مِّنَ الْمَلٰئِكَةِ وَمَعَهُمْ
لِوَاءٌ اَخْضَرُ فَيَرْكُزُ اللِّوَاءَ عَلٰى ظَهْرِ الْكَعْبَةِ
وَلَهٗ مِائَةُ جَنَاحٍ مِّنْهَا جَنَاحَانِ لَا
يَنْشُرُهُمَا اِلَّا فِيْ تِلْكَ اللَّيْلَةِ فَيُجَاوِزُ
الْمَشْرِقَ اِلَى الْمَغْرِبِ فَيَحُثُّ جِبْرِيْلُ
الْمَلٰئِكَةَ فِيْ هٰذِهِ اللَّيْلَةِ فَيُسَلِّمُوْنَ
عَلٰى كُلِّ قَائِمٍ وَّقَاعِدٍ وَّمُصَلٍّ وَّذَاكِرٍ
وَيُصَافِحُوْنَهُمْ وَيُؤَمِّنُوْنَ عَلٰى
دُعَائِهِمْ حَتّٰى يَطْلُعَ الْفَجْرُ فَاِذَا
طَلَعَ الْفَجْرُ يُنَادِيْ جِبْرِيْلُ مَعَاشِرَ
الْمَلٰئِكَةِ الرَّحِيْلَ الرَّحِيْلَ فَيَقُوْلُوْنَ
فَمَا صَنَعَ اللّٰهُ فِيْ حَوَائِجِ الْمُؤْمِنِيْنَ
مِنْ اُمَّةِ اَحْمَدَ صلعم فَيَقُوْلُ نَظَرَ
اللّٰهُ اِلَيْهِمْ فِيْ هٰذِهِ اللَّيْلَةِ فَعَفَا عَنْهُمْ
اِلَّا اَرْبَعَةً فَقُلْنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَنْ هُمْ
قَالَ رَجُلٌ مُدْمِنُ خَمْرٍ وَعَاقٌّ لِوَالِدَيْهِ
وَقَاطِعُ رَحِمٍ وَّمُشَاحِنٌ قُلْنَا يَا رَسُوْلَ
اللّٰهِ مَا الْمُشَاحِنُ قَالَ هُوَ الْمُصَارِمُ
فَاِذَا كَانَتْ لَيْلَةُ الْفِطْرِ سُمِّيَتْ تِلْكَ
اللَّيْلَةُ لَيْلَةَ الْجَائِزَةِ فَاِذَا كَانَتْ غَدَاةُ
الْفِطْرِ بَعَثَ اللّٰهُ الْمَلٰئِكَةَ فِيْ كُلِّ

په وخت کښ لس لکهه دوزخیان ذاورنه آزادوي
چه ذدوزخ حکم پرے شوے وی. او چه ذ
رمضان آخره ورځ شی. نو خدائ به په
دے ورځ ذرومبئ نه تر آخره پورے ذ
آزاد شوو هومره خلق آزاد کړی. او چه ذ
لیلة القدر شپه شی. نو خدای پاک جبریل
ته حکم اوکړی. نو دے به سره ذډیرو فرښتو
زمکے ته راکوز شی. او ذ دوی سره به شنه جهنډه
وی. نو دا جهنډه به ذکعبے په شا باندے خخه کړی.
او ذدے جبریل سل وزرے دی. دے به دوه وزرے
صرف په دے شپه خوره وی چه دا به ذمشرق نه
تر مغربه وی. بیا به جبرئیل ذملائکو نه داغوښتنه
اوکړی. په دے شپه به دوی هر اولاړنا ست
ما نځګذار او ذاکر ته سلامونه اوکړی. او ذدوی
په دعا به آمین تر صبا ختو اووائ. چه صبا را
اوخیژی نو جبریل چه اووائ کوچ اوکړئ دوی به
اووائ. چه اے جبرئیله خدائ ذمومنانو چه
ذخوږ نبی په امت کښ دی څه فیصله اوکړه.
نو دے به اووائ. چه خدائ دوی ته توجه اوکړه
په دے شپه او دیته ئے معافی اوکړه. مګر څلورو
ښو ته نه. یو سړی اودے. خوږه نبی! دا څوک
دی. دوی اودے چه ذشرابو عادت کس، ذمور
پلار نافرمان. ذخپلوئ شلونکے، کینه لرونکے؛
دوی ذمشاحن تپوس اوکړو نو خوږ نبی اووئے چه دا
تعلق شلونکے دے. پس هر کله چه ذروژی اختر

بِلادِهٖ فَيَهْبِطُوْنَ اِلَى الْاَرْضِ فَيَقُوْمُوْنَ
عَلٰى اَفْوَاهِ السِّكَكِ فَيُنَادُوْنَ بِصَوْتٍ
يَسْمَعُ مَنْ خَلَقَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ اِلَّا الْجِنَّ
وَالْاِنْسَ فَيَقُوْلُوْنَ يَا اُمَّةَ مُحَمَّدٍ صلعم
اُخْرُجُوْا اِلٰى رَبٍّ كَرِيْمٍ يُعْطِي الْجَزِيْلَ
وَيَعْفُوْا عَنِ الْعَظِيْمِ فَاِذَا بَرَزُوْا اِلٰى
مُصَلَّاهُمْ فَيَقُوْلُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ
مَا جَزَاءُ الْاَجِيْرِ اِذَا عَمِلَ عَمَلَهٗ قَالَ
فَتَقُوْلُ الْمَلَائِكَةُ اِلٰهُنَا وَسَيِّدُنَا جَزَاؤُهٗ
اَنْ تُوَفِّيَهٗ اَجْرَهٗ قَالَ فَيَقُوْلُ فَاِنِّيْ
اُشْهِدُكُمْ يَا مَلَائِكَتِيْ اَنِّيْ قَدْ
جَعَلْتُ ثَوَابَهُمْ مِنْ صِيَامِهِمْ شَهْرَ
رَمَضَانَ وَقِيَامِهِمْ رِضَائِيْ وَمَغْفِرَتِيْ
وَيَقُوْلُ يَا عِبَادِيْ سَلُوْنِيْ فَوَعِزَّتِيْ
وَجَلَالِيْ لَا تَسْئَلُوْنِي الْيَوْمَ شَيْئًا فِيْ
جَمْعِكُمْ لِاٰخِرَتِكُمْ اِلَّا اَعْطَيْتُكُمْ وَلَا
لِدُنْيَاكُمْ اِلَّا نَظَرْتُ لَكُمْ فَوَعِزَّتِيْ
لَاَسْتُرَنَّ عَلَيْكُمْ عَثَرَاتِكُمْ مَا رَاقَبْتُمُوْنِيْ
وَعِزَّتِيْ وَجَلَالِيْ لَا اُخْزِيْكُمْ وَلَا اَفْضَحُكُمْ
بَيْنَ اَصْحَابِ الْحُدُوْدِ اِنْصَرِفُوْا مَغْفُوْرًا
لَكُمْ قَدْ اَرْضَيْتُمُوْنِيْ وَرَضِيْتُ عَنْكُمْ
فَتَفْرَحُ الْمَلَائِكَةُ وَتَسْتَبْشِرُ بِمَا يُعْطِي
اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ هٰذِهِ الْاُمَّةَ اِذَا اَفْطَرُوْا
مِنْ شَهْرِ رَمَضَانَ ۔
(ترغیب)

شپه شي نو دې ته د انعام ورکولو شپه وائي
پس چه د اختر سحر شي . نو خدای پاک عز
وجل هر ښار ته ملائکې اولیږي نو دوي به زمکې
ته کوزې شي . او د لارو په خولو کښ به اودریږي
او په چغو به وائي چه دا یې د بني آدم او پیریانو
نه نور ټول مخلوق اوري . چه اے د محمد امته
د سخي خدای طرف ته اوځئ . چه ډیر څه
درکوي . او ګناهونه درته معاف کړي . پس چه
دوي عیدګاه ته لاړ شي . نو عز جل خدای
ملائکو ته اووائي چه مزدور چه مزدوري اوکړي
نو د هغه څه بدله ده ؟ نو ملائکې به ورته اووائي
مالکه خدایه د دې بدله خو دا ده چه پوره
مزدوري ورکړې شي . نو خدای پاک به
دوي ته اووائي چه تاسو ګواهان شئ
چه ما د دوي د روژو د رمضان او د تراویحو
په بدل کښ دوي ته خپله بخنه ورکړه . او خدای به
اووائي چه ځما بندګانو ځما په خپل عزت او لوئي
قسم وي . چه نن په دې جمع کښ چه تاسو ځما نه
د آخرت په باره کښ چه غواړئ نو هغه درکړم .
او د دنیا په باره کښ به ستاسو خیر ته ګورم . او ځما
دې په خپل عزت قسم وي . چه زه به ستاسو په غلطو
پرده اچوم . چه تاسو ځما خیال ساتئ . او ځما دې
په خپل عزت قسم وي چه زه به تاسو د مشرکانو به
په مجلس کښ بے عزته نه کړم . ځئ تاسو بخلي شوئ
تاسو زه رضا کړم . او زه ستاسو نه رضا شوم .
نو ملائکې به په دې بخنه د خدای چه د امت ته اوکړه خوشحاله شي په اختر کښ

فائده:۔ په دے حدیث کښ تا سو د جهګړو او مور پلار د نافرمان د عام بخنے نه پے بر خے ولیے اولوسته۔ د دوئ نه به لوئ بد بخته څوک وي. چه په جهګړو او د مور پلار په نافرمانئ لوئ خدائ خفه کړي۔ ده ګټه کومه اوکړه۔ دے خو جبرئیل او د ملائکو او د خوږ نبي صلی الله علیه وسلم د دعاګانو نه محروم شه۔ که اوس هم دے دا جهګړے پريږدي او د مور پلار تابعداري اوکړي۔ نو هم بنده د سحر روک که ما بنام کور ته راشي۔ نو وائي چه روک نه دے۔ ستا داد دنیا دوره به تيره شي۔ او دا سے خدائ ته به پيش شے چه بیا به دے هیڅ وس دست نه چليږي۔ هر څه به در نه غتا غ شي۔ ګوره! خدائ پاک خپل حقوق که اوغواړي نو بخي۔ ولے د بندګانو حقوق هیڅ کله نه بخي۔ دے قسم بنده ته خوږ نبي صلی الله علیه وسلم غريب او نفقیرو لیلے دے۔ چه دے ډيرے نیکئ قیامت ته یوسي او دا به توسه د بندګانو په حقوقو کښ لاړے شي. تردے چه هر کله په نیکو پوره نه شي۔ نو بیا به د هغوي بدي په خپل سر کدي۔ او آخر به دے خپله بدئ او د نورو بدو به مجموعه دوزخ ته لاړ شي۔ نو سره د ډيرو نیکو د ده دا حالت د انسانانو د حق تلفئ په وجه اوګرځیده۔ واقعي د ده نه زیات فقیر بل څوک کیدے شي؟

دے په ډولے بت نه ګوري پاس آسمان ته
چه يے خپله خواري خاورے کړله ځان ته

د بخنے متعلق دا اصول یاد اولرئ. چه هر کله خدائ بنده ته بخنه اوکړي اوګنا هونه یے نه ندان شي. نو بیا د نورے بخنے مطلب رحمت او انعام وي. چه دا به ورکوي۔ او د ملائکو د شا هدئ دا مطلب دے. چه د قیامت په عدالت کښ به یا قاعده د پیغمبرانو نه د تبلیغ رسولو ګواهان غوښتے شي۔ تردے چه خوږ نبي صلی الله علیه وسلم وائي. چه ستا سو نه به ځما په باره کښ تپوس کیږي۔ چه محمد صلی الله علیه وسلم تبلیغ کړے وو که؟ نو تا سو ګواهان شئ چه ماپوره دین در رسولے دے۔

او په بخاري شریف کښ د نوح علیه السلام واقعه ده۔ چه

دے به ہر او غوښتے شی . او د دکا نه به تپوس اوشی - چه تا خپل قوم ته تبلیغ کړے دے که نه؟ دے به وائی چه او - نو د دکا د قوم نه به تپوس اوشی - نو دوی به انکار اوکړی - چه مَاجَاءَنَا مِنۡ بَشِیۡرٍ وَّ نَذِیۡرٍ نو د نوح علیه السلام نه به تپوس اوشی - او گواه به ترے او غوښتے شی - نو دے به خو د نبی علیه السلام او د دکا امت په گواهئ کښ پیش کړی - او چه په امت د ہرو ستو والی اعتراض اوشی - نو دوی به او وائی - چه مونږ د خپل نبی محمد صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دو - او په قرآن شریف کښ دا ذکر موجود دے - د غسے به نورو امتیانو او پیغمبرانو سره معامله کیږی - وَکَذٰلِکَ جَعَلۡنٰکُمۡ اُمَّةً وَّسَطًا لِّتَکُوۡنُوۡا شُهَدَآءَ عَلَی النَّاسِ -

امام فخر الدین رازیؒ وائی - چه په قیامت کښ به ځلور قسم شاهدی وی -

یوه د ملائکو - وَجَآءَتۡ کُلُّ نَفۡسٍ مَّعَهَا سَآئِقٌ وَّ شَهِیۡدٌ -

دویم د پیغمبرانو - وَکُنۡتُ عَلَیۡهِمۡ شَهِیۡدًا مَّا دُمۡتُ - فَکَیۡفَ اِذَا جِئۡنَا مِنۡ کُلِّ اُمَّةٍۭ بِشَهِیۡدٍ -

دریم د امت محمدی شاهدی - وَجِایۡٓءَ بِالنَّبِیّٖنَ وَالشُّهَدَآءِ

ځلورم د خپلو اندامونو گواهی - یَوۡمَ تَشۡهَدُ عَلَیۡهِمۡ اَلۡسِنَتُهُمۡ وَاَیۡدِیۡهِمۡ

په تیر حدیث کښ د خدائے پاک ځلورم انعام داد دے . چه مسلمانانو روژه دارو ته خدائے پاک وائی - چه زه به تا سو د کافرانو په مخکښ نه یے عزته کوم - دا د خدائے پاک لوئی کرم دے - دا هغه د خدائے عیبو رصفت مقام دے - چه د دکا د رضا لټو نکی د کافرانو په مخکښ نه رسوا کوی - او د دکا به گناهونو لغزشونو پردا اچوی - اے الله مونږ هم په دے لټونکی کښ اوگرزوے - آمین -

پنځم یے دا اخر شپه د انعام شپه اوگرځوله - هرکله چه خدائے پاک انعام ورکوی نو یکار دی - چه د دے شپے قدر اوشی - او د خدائے پاک نه په شوکیرو او عبادت انعام واغستے شی - خو څومونږ عوام خو پر سیر ده

خواص په دې شپه په اوږدو خپو خوب کوي. او وایي چه راځئ چه د روژې ستوماني اوباسو. خو نبي صلی الله علیه وسلم د آخرو لسو د شپو د عبادت دا فائده بیانوي. چه د دې شپو د عابد به په هغه ورځ زړه مړ نه وي چه د نورو خلقو زړونه به مړه وي. کیدې شي چه د دې نه مراد د شپیلۍ د پوکلو ورځ وي. چه کښې په دې عابد به بې هوشي نه راځي.

خو نبي علیه السلام د پنځو شپو د عابد د پاره جنت واجب وایي. لیلة الترویه، د لوئ اختر اتمه شپه، لیلة العرفه نهمه شپه، لیلة النحر، د لوئ اختر شپه، او د وړوکي اختر شپه او د شعبان پنځلسمه شپه.

فقهاء د اخترونو عبادت مستحب مني. د امام شافعي رح نه په ما ثبت بالسنه کښې نقل دي. چه پنځه شپې د دعا د قبلیدو دي. د جمعې شپه، د دواړو اخترونو شپې، د ذبرکې میاشت اوله شپه، او پنځلسمه شپه د شعبان.

بعض بزرګان د رمضان د جمعې شپه خاصکر ډیره متبرکه وایي. خو د دې سره د خصوصیت د لاره کولو د پاره ځکښې روستو شپې یو ځائې کول بکار دي.

په آخر کښې د دې رسالې د کتونکو نه د مولانا زکریا صاحب او خما د پاره چه د پښتو د پاره م د پښتو اسانتیا پیدا کړه. دا سوال دې. چه تاسو چه په رمضان کښې په خاصو اوقاتو کښې د ځان د پاره سوال کوئ نو خمونږ د پاره هم سوال کوئ کیدې شي چه ستاسو په دعا زمونږ هم د خدائ رضا او لقا نصیب شي.

مولانا د اردو اشعار په آخر کښې لیکلي دي. زه یې د پښتو کولو کوشش کوم.

اشعار

که بدکار او ګناهګار یمه اے خدایه ستا د دره تللے نه شم بل ځایه
ستا ذلیل به م هیڅوک په بنده راشي

ناامیدي کړمه اے خدایه زه تباه برباد — مه کوه ته ماته کړه پخپل کرم دې بنیاد
خدایه دا د رحم او احسان په واسطے سره

جوړ غاړه عابدان په عبادت دي — زاهدان د خپلے پنګے په راحت دي
دے بے شے د یاره کړے سبب تیار ربه!

نه فقیري نه امیري غواړم له تا نه ربه — نه زهد او نه علم نه ادب د نه پیشا نه ربه
ډیر د زړه د پردو نه درنه زه ربه مدام غواړم

عقل فکر هوش هم د دنیا ډیر نعمتونه — راد کړلو ربه! ډیر پیشانه راحتونه
درنه غواړمه اوس هغه چه وي ماسره مدام

حال خراب ګڼاه دے ته ژوندون ځما برباد — داد امید د رحمت دے او کړے ما سره امداد
دا غواړم د رحم ستا بے حد نه چه بے عدده دے

زه که ګنهګار یم زه بوجۍ د ګناهونو یم — نه شافي کافي يې په سختو کښے لویه خدایه
ته ماله کافي يې ته رب يې ته کارساز ربه!

محمد ذکریا کاندهلوي مقیم مظاهر علوم سهارنپور

ترجمه په پښتو

مولانا حبیب الرحمان صاحب - دارالتصنیف - روستم - مردان